دننه د غونډو جوړول، تمثيل، د مقالو ليکل، د جرېدو جوړول او د ورځنيو اړتياوو په اړه خبرې کول داسې فعاليتونـــه دي، چې زده کوونکي د ژبې زده کړې ته هڅوي او مرسته ورسره کوي.

د لوست په دې کتابونوکې د ورځنيو موضوعاتو په اړه يو لړ مرکې راغلي. ښوونکی دې دا مرکې پـــه زده کوونکـــو سرته ورسوي. توپير نه کوي، که مرکې ټکي په ټکي د کتاب له متن سره سمون ونه لري. درانه ښوونکي دې زيار وکـــاږي، ددې مرکو په څېر نورې په زړه پورې موضوع ګانې پيدا او زده کوونکو ته دې لارښوونه وکړي، چې په لنـــډو مرکـــو يـــې سرته ورسوي. دلته د ښوونکو مهارت، وړتيا، تجربه، مينه، مسووليت او نه ستړی کېدونکی کار خورا ډېر اغېـــزمن واقـــع کېږي. له دولسم ټولګي څخه د دويمې ژبې فارغ زده کوونکی بايد تر ډېرې کچې په پښتو خبرې وکړای شي، نـــورو تـــه خپل مفهوم او غوښتنه له ستونزو پرته ورسولای شي، د نورو پر خبرو او ويناوو پوه شي او هغه څه چې غواړي لـــه ســـتونزې پرته پخپله وليکلای شي.

د داسې يوې ورځې په هيله، چې د افغانستان ټول وګړي له ستونزو پرته د يو واحد ولس په توګه يو د بـــل پـــه ژبـــه وپوهيږي او خپلې اړتياوې پوره کړي.

د ثانوي دورې د پښتو ژبې درسي کتابونه د افغانستان د تعليمي نصاب د عمومي هدفونو پر بنسټ په دې موخه تاليف اوتدوين شوي دي چې زده کوونکي په ټولنيزو اړيکو کې د ژبې پر ارزښت، د معياري ژبې پر پېژندنې او د ملـــي، دينـــي او فرهنګي ارزښتونو په پياوړتيا کې د هغې په رول وپوهيږي. ښه او رغنده تدريس د زده کړې د عمومي پروګرام يوه برخـــه ده او ټاکلو موخو ته رسيدل آسانوي.

## د مضمون د تدريس لارښود

ددې لارښود په لومړي څپرکي کې د درسي مضمون له عموميات او لومړنيو خبرو او د تدريس او ارزونـــې لـــه لارو چارو سره بلد شوئ. په دې څپرکي کې به د تدريس له کلني پلان او د هر لوست د تدريس له لارو چارو سره بلد شئ.

د تدريس کلنی پلان

د تدريس کلنی پلان څرګندوي چې د لوست کتاب پر يوه تعليمي کال څنګه وويشل شي. زموږ په هېواد کې تعليمي کال د سړو او تودو سيمو لپاره يو له بله توپير کوي. په تودو سيمو کې تعليمي کال د منې د فصل په پيل پيليږي. د مرغومې د مياشتې په دوه اوونيو کې څلور نيم مياشتنۍ آزموينه اخيستل کېږي. وروستۍ دوه اونۍ زده کوونکي رخصتيږي. د پـــسرلي د فصل په وروستۍ مياشت، يعنې غبرګولي کې په دوو لومړنيو اوونيو کې ازموينه اخيستل کېږي او له هغـــې وروســـته زده کوونکي د کال وروستي رخصتي اخلي.

په سړو سيمو کې تعليمي کال د وري په لومړۍ پيليږي. څلورنيم مياشتنۍ ازموينه د چنګاښ په مياشت کـــې اخيـــستل کېـــږي. زده کوونکي له ازموينې څخه وروسته د زمري په دوو لومړنيو اوونيو کې رخصتيږي. د تعليمي کال په پای کـــې د لينـــدۍ د مياشـــتې په لومړيو دوو اوونيو کې کلنۍ ازموينې پيليږي او له هغې وروسته زده کوونکي د ژمي په رخصتۍ ځـــي. تعليمـــي کـــال ۲۸ اوونـــۍ دوام مومي. د کلني پلان د تنظيم لپاره د لوست د کتاب مخونه پر ۲۸ عنوانونو وېشل کېږي. لاسته راغلې شمېره په يـــوې اونـــۍ کـــې د لوست د کتاب د تدريس برخه څرګندوي. د هر لوست په ورځني پلان کې د هر لوست د زده کړې مـــوخې، د تـــدريس او ارزونـــې لارې چارې، د تدريس توکي، د تدريس فعاليتونه (د لومړنيو فعاليتونو سرته رســـول، لکـــه ســـلام، روغبـــړ، د حاضـــرۍ اخيـــستل، د پخواني لوست پوښتنه، د انګېزې رامنځته کول، د نوي لوست وړاندې کـــول او د زده کوونکـــو د زده کـــړې ارزول)، د لوســـت د متن او پای په اړه پوښتنې او د زده کوونکو او ښوونکو لپاره د اضافي معلوماتو برخه جوړوي. هغه په ځير وګـــورئ او پـــه پـــوره زړه سوي او رغنده ډول يې د شونتيا تر کچې پر خپلو زده کوونکو عملي کړئ. د لسم، يوولسم او دولـــسم ټـــولګي د پـــښتو د لوســـت کتابونه ۲۸ لوسته لري. هر لوست په يوې اونۍ کې تدرسيږي. د وروستي ساعت په پای کې ښوونکی ډاډ تر لاســـه کـــوي چـــې زده کوونکي د لوست ټولې موخې تر لاسه کړې دي؛ پوهه يې زياته شوې؛ ژبنۍ وړتيا يې پياوړې شـــوې او ذهنيـــت يـــې مثبـــت بـــدلون موندلی دی. په دې موخو کې د ژبې زده کړه، خبرې کول او لوستل تر هرڅه دمخه دي.

# لومړی لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | دعا | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ــ د الله ﷻ د قدرت، وحدانیت او د ده د صفاتو په هکله به وپوهېږي.<br>ــ د لوی الله ﷻ د عظمت او یووالي په هکله به خپلو ټولګیوالو ته خبرې وکړي.<br>ــ د حمد بیتونه به په روانه توګه ولوستلای شي.<br>ــ د متن لغتونه به معنا او په جملو کې به یې وکاروي.<br>ــ د بیتونو معنا او مفهوم به په نثر ولیکلای شي.<br>ــ د متن لنډیز به په روانه توګه خپلو ملګرو ته وویلای شي.<br>ــ د لوست په پای کې به زده کوونکي د خپل ژوند په ټولو چارو کې د الله ﷻ له رضا سره سم د اوامرو اطاعت وکړي. | |
| د تدریس لارې: | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یو کسیز کار او ډله ییز فعالیتونه | |
| د تـــدریس وســـیلې او مرستندوی توکي | درسي کتابونه، توره تخته، تباشیر، د لغاتو او ځینو ستونزمنو کلمو لیکل شوي کارتونه. | |
| د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د څارنې ارزونه او د یادداشت کتابچه | **وخت** |
| د زده کړې او تـــدریس فعالیتونه: | سلام او ستړي مه شي، حاضري اخیستل، د کورنۍ دندې کتنه او نور مقدماتي فعالیتونه | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | − حمد څه ته وایي؟<br>ــ د الله ﷻ د قدرتونو په هکله څوک خبرې کولای شي؟<br>ــ د الله ﷻ د قدرتونو، د نښو او نښانو ځینې مثالونه ووایئ!<br>ــ د الله ﷻ د صفاتو څخه د ځینو یادونه وکړئ! | ٦ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| ــ ښوونکی دې د نوي ټولګي او پر مختګ د مبارکۍ تـــر ویلو وروسته په ((بسم الله الرحمٰن الرحیم)) سره خپلـــې خبرې پیل او د دوی د هڅونې او تـــشویقولو لپـــاره دې مناسبې او اړینې خبرې وکړي. | ــ زده کوونکي د ښوونکي له مهربانۍ څخه مننـــه او کـــور ودانی کوي، بیا د ده خبرو ته په مینه غوږ نیسي. | |
| ــ ښوونکی دې د نوو درسونو په هکله خبرې وکـــړي او څوهڅوونکې پوښتنې دې وکړي. | ــ زده کوونکې دې دښوونکي خبرو او لارښوونو ته پاملرنه وکړي. پو ښتنو ته دې مناسب ځوابونه وایي. | |
| ــ بیا دې ښاغلی ښوونکی نوی لوست په مناسب او لـــوړ اواز ولولي، ستونزمنې برخې دې روښانه او سمې تلفـــظ کـــړي، د معنا او مفهوم په هکله دې هم پوره څرګندونې وکړي. | ــ زده کوونکي د نوي لوست متن ته چې په مناسب او لوړ اواز لوستل کېږي، غوږ نیسي او د کلمو تلفظ ته پوره ځیر کېږي. | |

| | |
|---|---|
| ــ ښوونکی دې د لوست یوه یوه برخه په بېلا بېلو زده کوونکو باندې ولولي او د دوی غلطیو ته دې پوره پاملرنه وکړي او سمه بڼه دې پرې تکرار کړي. | ــ زده کوونکي په وار سره د متن په لوستلو کې برخه اخلي. |
| ــ ښوونکی دې د زده کوونکو په ډله ییز فعالیت کې هر ګروپ ته بېل بېل فعالیتونه ورکړي او له دوی څخه دې وغواړي چې د لوی الله ﷻ په صفاتو، قدرتونو او یووالي باندې خبرې وکړي او په پای کې دې بیا خپلې پاڼې نورو ته ولولي. | ــ زده کوونکي په ټاکلو ډلو کې خپله ورټیا ښیي او خپله ونډه په ډله ییز فعالیت کې بشپړوي. |
| ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې د لوست لنډیز په خپله ژبه ووایي. | ــ زده کوونکي د ښوونکي په لارښوونو عمل کوي. |
| ــ ښوونکی دې زه کوونکو ته په لومړي او دویم درسي ساعت کې د لوست کورنۍ دنده په خپله خوښه ورکړي او په دریمه ورځ دې په کتاب کې راغلې کورنۍ دنده وروسپاري. | ــ زده کوونکي خپله ورسپار ل شوې دنده په خپلو کتابچو کې لیکي او په کورونو کې یې بشپړوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

صنیع: صنعت ګر یعني الله ﷻ

بوقلمون: هر رنګ، ډول ډول

بدیع– نوی، تازه

خالق، پیدا کوونکی

عقرب: لړم، د یوې میاشتې نوم

شومي: بدبختي، بدمرغي

خوان: د سترخوان

نادر: کمیابه، ډېر لږ پیدا

جود: کرم، سخاوت او ځوانمردي.

**کاظم شیدا:** د افضل خان کشر زوی، د اشرف خان لمسی او د خوشحال خان خټک کړوسی دی. نوموړی د پښتو ژبې پیاوړی شاعر و او د شعرونو یو بشپړ دیوان لري چې دریې ځلې چاپ شوی دی علامه پوهاند عبدالحی حبیبي لیکي چې د کاظم خان شیدا اشعار عشقي او اخلاقي خواوې لري، خو په پښتنو شاعرانو کې د ده امتیاز دا دی چې شیدا یو نازکخیاله او د پیاوړي تخیل څښتن او په شاعرۍ کې د هندي سبک لاروی دی.

الله تعالی ﷻ آدم علیه السلام څنګه له خاورو جوړ کړی او هغه یې پر ځمکه خپل خلیفه وګرځاوه؟

په قرآن عظیم الشان کې د المؤمنون (۱۲ـ۱۴) آیتونو ژباړه:

(( موږ انسان له سوچه ختې جوړ کړ، بیا مو هغه په محفوظ ځای کې د اوبو یو څاڅکی وګرځاوه، بیا مو هغه څاڅکي ته د وینې د یوې ټوټې بڼه ورکړه، بیا مو د وینې ټوټه بوټۍ غوښه وګرځوله، بیا مو له بوټۍ غوښې څخه هډوکي جوړ کړل او هډوکو ته مو غوښه وروا‌غوستله، بیا مو هغه یو بل مخلوق جوړ کړ. الله ﷻ د ډېر لوړ شان څښتن دی او د ټولو پیدا شوو ښه پیدا کوونکی دی.))

**تفسیر:**
اللهﷻ په دې مبارکو آیتونو کې خپل د قدرت او عظمت دلایل د انسان په خلقت، د هغه د جوړښت د مرحلو، د هغــه د ژوند او مرګ او دویم ځلي را ژوندي کېدو په ترڅ کې بیان کړي دي. په داسې توګه چې انسان د پیدایښت مرحله لــه خاورو څخه پیلېږي او د انسان په بشپړ بدن پای ته رسېږي.
قرآن کریم په دې مبارک آیت او نورو آیتونو کې فرمایلي دي چې انسان لومړی له خاورې څخه پیدا شوی دی. د انسان پیدایښت له خاورې څخه پیلېږي او د پړاوونو له تېرولو څخه وروسته د ښې بڼې او ښایسته صــورت لرونکــی انــسان ورڅخه جوړېږي، له خاورو څخه د انسان د پیدایښت موخه دا دی چې الله تعالیﷻ د لومړي ځــل لپــاره آدم‌عليه‌السلام لــه خاورې څخه پیدا کړ، بیا یې بي بي حوا له آدم‌عليه‌السلام څخه پیدا کړه او بیا د انسانانو خلقت او پیدایــښت لــه حــضرت آدم‌عليه‌السلام او بي بي حوا څخه د نکاح او تناسل په ډول پیل شو.
د انسانانو اصل له خاورې څخه دی، لکه څنګه چې الله تعالی فرمایلي دي. یاد شوي معتبر آیتونه د قرآن عظیم الــشان د علمي اعجاز له روښانو دلایلو څخه ګڼل کېږي، ځکه چې د قرآن عظیم الشان ونیاوې په دې آیتونو او نورو آیاتو کــې د انسان د خلقت او د هغه د مختلفو مرحلو په اړه داسې دقیقې او حیرانوونکې دي چې د الله تعالی له خوا له وحې پرته بل کوم مصدر او سرچینې نشي لرلی.
هغه څه چې د طب علم او جنین پېژندنې په شلمې او یوویشتمې پېړۍ کې له ډېرو څېړنو او د پرمختللو وسایلو له کارولو څخه وروسته کشف کړل. قرآن عظیم الشان پنځلس پېړۍ دمخه په ډېر دقت او څرګند ډول دا موضوع بیان کړېده.
یورتنیو آیاتونو د انسان د خلقت او مرحلو ته اشاره کړېده، دغه پړاوونه په اوسني عصر کې د طب د علــم لــه مهمــو څېړنیزو موضوعاتو څخه شمېرل کېږي.
د اوسني طب پوهان داسې وایي: ((د قرآن عظیم الشان د آیاتونو له مجموعې څخه چې د انسان خلقت پــه هکلــه دي لاندیني مراحل څرګندېږي. (د نطفې مرحله، د علقې مرحله، د مخلقه او غیر مخلقه مضغې مرحله، د هډوکو مرحله، پــه غوښو د هډوکو د پوښولو مرحله، د شکل او صورت د بشپړېدلو مرحله (د کامل انــسان مرحلــه)، د روح د پوکولــو مرحله).
په دې ترتیب موږ ګورو چې د جنین د تکامل مراحل چې د علمي څېړنو او اکتشافاتو پر بنسټ حاصل شوي، یــوازې دا نه چې د قرآن سره مطابقت لري، بلکې په دې لړ کې د قرآن عظیم الشان تعبیرات او اصطلاحات له ډېر دقــت څخــه برخمن دي.

هغه څه چې مو د قرآن عظیم الشان په آیتونو کې د انسان د خلقت د مراحلو په هکله ولوستل که له یوې خوا د الله تعالی په وجود او وحدانیت ګواهي ورکوي، له بلې خوا د ټول بشریت لپاره د الله تعالی له لوري د آخرین پیغمبر پــه توګــه د حضرت محمدﷺ د رسالت او نبوت په رښتینوالی او د الله تعالی له لوري د بشریت د لارښوونې لپاره د هغه د ریــښتینې کتاب قرآن مجید په حقانیت دلالت کوي.
ځکه د نن څخه پنځلس سوه کاله پخوا په ډېر دقت او تفصیل سره د انسان د خلقت د مراحلو پــه اړه داســې نــوې او حېرانونکې خبرې یوازې او یوازې د الهي وحې له لارې ممکنې وې، هغه مهال نه په ځمکه، نه په مدینه او نه هم د هغــه وخت په پرمختللو ښارونو کې د انسان د خلقت د اسرارو په اړه د طبي زده کړو او څېړنو کوم مرکز شتون درلود. نــه داسې وسایل وو چې د هغو په کارولو سره د جنین د ودې، او خلقت پټ اسرار کشف کړای شي، نه هم هغه څوک چې قرآن کریم پرې نازل شوی و، یعنې حضرت محمدﷺ د طب او جنین پېژندنې کوم سبق ویلی و، الله تعالی په دې اړه څــه ښه فرمایلي دي، ژباړه: ((بېشکه په دې ټولو کې د هغو خلکو لپاره دلایل دي چې له غور او فکر څخه کار واخلي.

**اضافي معلومات**

د البقرې سورت: ۱٦۴ ژباړه: ((بېشکه د آسمانونو او ځمکې په پيدايښت کې، د شپې او ورځې په تګ او راتګ، په هغې کشتۍ کې چې د خلکو د ګټې لپاره په دريابونو کې ګرځي، د باران په اوبو کې چې الله تعالی له آسمانه رانازل کړېدي او بيا يې ځمکه وروسته د هغې د مرګ نه په اوبو راژوندۍ (خړوبه) کړه او په هغې ځمکې کې يې هر ډول ژوندي خوځېدونکي خواره کړل او (هر لوري) ته د بادونو په چلېدو او ورېځو کې چې د ځمکې او آسمان ترمنځ ايل کړی شوېدي. يقيناً په دې (ټولو) کې د عاقلانو لپاره (د الله تعالی پر وجود او وحدانيت) ځرګند دلايل شته.))

په دغو مبارکو آيتونو کې د آسمانونو پيدايښت د اللهﷻ د قدرت له نښو نښانو څخه ګڼي چې هوښياران او د عقل خاوندان د دې نښو په ليدو بايد د اللهﷻ په وجود او يووالي ايمان راوړي، دا چې د آسمانونو پيدايښت د اللهﷻ په وجود يووالي او قدرت دلالت کوي، يوه نښه يې دا ده چې اللهﷻ آسمانونه سره له دومره پراخۍ او لويۍ پرته له ستنو درولي او هغه يې په ستورو، لمر او سپوږمۍ روښانه کړي، دا ټول ښايست او ټينګښت د واحد او قادر اللهﷻ په برلاسي او لويۍ ځرګنده ګواه دی.

د اللهﷻ د قدرت يوه بله روښانه نښه دا ده چې ځمکه يې پيدا کړې او هغه يې اواره کړې ده، څو انسان پر دې ارام او هوسا ژوند وکړي. په هغې کې له پرتو ژېړمو او پانګو څخه يې ګټه واخلي او د ځمکې پر مخ ابادي او پرمختګ وکړي.

په مبارک آيت کې د اللهﷻ د قدرت دريم دليل د شپې او ورځې منظم حرکت دی چې پرله پسې ګرځي او يو د بل ځای نيسي، د شپې او ورځې حرکت د اوږدوالي او لنډوالي، توروالي او سپينوالي، تيارې او رڼا د اختلاف سره سره د انسان لپاره ډېرې ګټې رامنځته کوي. الله تعالی شپه د انسان د سکون او راحت لپاره او ورځ يې د کسب او کار او روزي ترلاسه کولو لپاره پيدا کړېده. که چېرې شپه نه وای، نو ډېر مخلوقات به له خوب او راحت څخه بې برخې وو.

همدارنګه شپه د ستر او پردې لپاره يو ښه او مناسب وخت دی چې انسان ورڅخه په بېلا بېلو حالاتو کې ګټه واخلي، لکه څنګه چې انسان له ورځې او د هغې له رڼا څخه د ډېرو کارونو په ترسره کولو کې ګټه اخلي، همدارنګه د شپې او ورځې د بدلون او توپير په پايله کې وختونه، ورځې، مياشتې او فصلونه ټاکل کېږي چې دا ټول د انسان لپاره د اللهﷻ له لويو نعمتونو او د قدرت له نښانو څخه دي.

په مبارک آيت کې د اللهﷻ د قدرت څلورمه نښه د لويو کښتيو حرکت دی چې د سوونو او زرونو ټنو وزن سره د سمندرونو د څپو په سر حرکت کوي او انسانان ورڅخه ګټې اخلي. په دې مبارک آيت کې اللهﷻ په سمندرونو کې د کښتيو د حرکت يادونه د شپې او ورځې د توپير نه وروسته کړېده او دا په يوه ځانګړې باريکۍ دلالت کوي او هغه دا چې مسافر دريابونو او سمندرونو کې د شپې او ورځې ځارنې ته ډېر اړ وي، ترڅو وختونه وپېژني او خپل لوری وټاکي له همدې کبله کښتۍ چلوونکی د نجوم علم او د شپې او ورځې پېژندلو ته ډېره اړتيا لري.

د اللهﷻ د قدرت له نښو نښانو څخه بل دليل له آسمانه د باران د اوبو ورېدل دي چې د هغو په واسطه وچې او مړې ځمکې راژوندۍ کوي او د ځمکې په مخ ډول ډول بوټي، واښه او ژوي راپيدا کوي او په خوځښت يې راولي.

د ځمکې له ژوندي کېدو څخه مراد دا دی چې اللهﷻ د باران د اوبو په راورولو سره د ځمکې د ودې طاقتونه چې د وچوالي او مرګ په حالت کې وي په خوځښت او حرکت راولي چې د دې خوځښت له امله هغه څه چې په ځمکه کې پټ دي ځرګندوي.

هر ډول بوټي، ګلونه، مېوې او داسې نور راشنه کېږي او سمسورتيا مومي. د ځمکې ژوندي کېدل او د ځمکې پر مخ د ډول ډول نباتاتو او حېواناتو خورېدنه د الله تعالیﷻ د قدرت له لويو نښانو څخه دي.

د الله تعالیﷻ د قدرت او وحدانيت بل دليل دا دی چې هغه په خپل لوړ قدرت سره بادونه او هوا پيدا کړېده، په خپلې

| |
|---|
| ارادې سره يې په حرکت راولي او په خپل حکمت سره يې له يوه لوري نه بل لوري ته اړوي.<br>د بادونو لګېدنه بېلا بېل ډولونه او شکلونه لري چې قرآن عظيم الشان هر يو په بېلا بېلو نومونو ياد کړي دي. کلــه لــه ختيځ نه لويديځ او کله هم له لويديځ نه ختيځ لوري ته همدارنګه د شمال او سويل لور ته حرکت کوي. په همـــدې ډول بادونه ډول ډول حالتونه لري. طوفاني يا ملايم حالت، ګرم يا يخ تند باد يا نرم حالت چې په دې توګه بادونـــه د اللهﷻ د رحمت نښې او يا د هغه د عذاب بېلګې دي. د بادونو قوت او چټکتيا په داسې اندازه سخت او ځواکمن وي چې کلـــه ناکله په ډېرو هېوادونو کې د هيبتناکو ورانيو او تباهيو لامل ګرځي.<br>همدارنګه د اللهﷻ د يووالي له روښانو دلايلو څخه د آسمان پر مخ ځوړنـــدې او ولاړې وريځـــې دي چـــې د اللهﷻ د خوښې او ارادې تابع او امر منونکي دي. ظاهراً که چېرې دغه وريځې سپکې وي، نو بايد فضا ته پورته شـــي او ورکـــې شي او که درنې وي، نو بايد ځمکې ته راکوزې شي، خو الله تعالی په خپل قدرت او ارادې سره دغه وريځې په فضا کـــې خورې کړې دي او ساتنه يې کوي، ترڅو د باران اوبه ورڅخه راوروي. |
| **اخځليکونه**<br>ــ د يوولسم ټولګي تفسير شريف، ۱۳۸۹هــ.ل. کال. |

# دویم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرحه | د مطلبونو سرليکونه |
|---|---|---|
| | نعت | د لوست موضوع |
| | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ د نعت د کلمې په معنا او مفهوم به پوه شي.<br>ـ د لوی پیغمبرﷺ د صفاتو او ورتیاوو په هکله به وپوهېږي.<br>ـ د نعت بیتونه به په روانه توګه ولوستلی شي.<br>ـ د بیتونو په معنا او مفهوم به وپوهېږي او په دې اړوند بــه نــورو زده کوونکو سره خبرې وکړي.<br>ـ د متن لنډیز به د نثر په توګه ولیکلی شي.<br>ـ د بیتونو ځینې لغتونه به معنا او په جملو کې به یې وکاروي.<br>ـ د لوست په اساسي مقصد او موخې باندې به خبرې وکړای شي.<br>ـ د متن په پای کې به زده کوونکي په خپلو ټولو کړنو کې د لوی پیغمبرﷺ لارښوونې د خپلې لارې مشعل وګرځوي. | د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې |
| | لیکل، لوستل، پوښتنې او ځوابونه، یو کسیز کار او ډله ییز کار | د تدریس لارې |
| | درسي کتابونه، توره تخته، تباشیر، د کلمو او لغاتو او ځینو نــورو ستونزمنو برخو لیکل شوي کارتونه او چارټونه. | د تدريس وســـيلې او مرســـتندوی توکي: |
| | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د ځارنې په وســـيله ارزونـــه او د یادداشت کتابچه | د ارزونې لارې |
| ۴ دقيقې | سلام او ستړي مه شي، حاضري اخيستل او د کورنۍ دندې کتنه | د زده کړې او تدريس فعاليتونه: |
| ٦ دقيقې | ښوونکی دې لاندې هڅوونکې پوښتنې له زده کوونکـــو څخـــه و پوښتي:<br>ـ حضرت محمدﷺ ته ولې خيرالبشر وايي؟<br>ـ د حضرت محمدﷺ نور نومونـــه او لقبونـــه چـــې د ده د لـــوړ شخصيت ښکارندوی وي ووايئ.<br>– څوک د نعت په لغوي او اصطلاحي معناوو پوهېږي؟<br>– په نعتونوکې کوم ډول مطلبونه بيانېږي؟ | د انګېزې رامنځته کول |

| ۳۵ دقيقې | د زده کوونکو فعاليتونه | د ښوونکي فعاليتونه |
|---|---|---|
| ـ زده کوونکي په چوپتيا سره متن پـــه غـــور لـــولي او ستونزمنې کلمې په نښه کوي.<br>ـ زده کوونکي د متن لوستلو او د کلمو تلفظ ته پـــوره | | ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چـــې د نـــوي لوست متن په چوپه خوله ولولي.<br>ـ ښوونکی دې متن په لوړ او مناســـب غـــږ ولـــولي او زده |

| | |
|---|---|
| کوونکي دې د هغه په معنا او مفهوم وپوهوي.<br>ــ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه په وار سره وغواړي چې د متن یوه یوه برخه د ټولګي مخې ته ولولي او پاتې کسان دې د معنا په برخه کې څرګندونې وکړي.<br>ــ ښوونکی دې زده کوونکي په پنځو ډلو وویشي او هرې ډلې ته دې د متن اړوند فعالیتونه ورکړي چې په ترتیب سره یې لومړی فعالیت لومړۍ ډلې ته، دویم فعالیت دویمې ډلې ته او ... وسپاري او له هرې ډلې څخه دې یوه یوه غړي ته بلنه ورکړي چې د ټولګي مخې ته راشي او د خپل کار څرنګوالی نورو ته ووایي.<br>ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته په لومړي او دویم درسي ساعت کې د لوست کورنۍ دندې په خپله خوښه ورکړي او په درېیمه ورځ دې د حضرت محمدﷺ د غوره اخلاقو په اړه دځو کرښو دلیکلو سپارښتنه وکړي او په راتلونکي ساعت کې دې نورو ته ولولي. | پاملرنه کوي.<br>ــ څو تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راځي او د متن په لوستلو کې خپله وړتیا او مهارت ښیي.<br>ــ زده کوونکي په خپلو اړوندو ډلو کې سپارل شوي فعالیت سرته رسوي او له هر ګروپ څخه یو یو تن د ټولګي مخې ته راځي او خپله لیکل شوې پاڼه نورو ته لولي.<br>ــ زده کوونکي د کورنۍ دندې عنوان په خپلو کتابچو کې لیکي او په کورونو کې یې بشپړوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

**پیغمبر چا ته ویل کېږي؟**

پیغمبر هغه څوک دی چې الله تعالیﷻ د انسانانو له جملې څخه غوره کړی او د وخت د غوښتنو سره سم یې د ټول بشریت د لارښوونې لپاره رالېږلي وي چې انسانان د ناپوهۍ او کفر له تیارو څخه راوباسي او د هدایت رڼا او نیکمرغۍ لور ته یې دعوت کړي.

الله تعالیﷻ پیغمبران د رسالت درجې ته رسولي او خلکو ته د تبلیغ کولو دنده یې دوی ته سپارلې ده، په پیغمبرانو کې لومړی پیغمبر حضرت ادمعليه السلام او وروستی پیغمبر حضرت محمدﷺ دی چې تر ټولو غوره دی، ټول پیغمبران حق او رښتیني دي.

د ابوذر غفاريرضي الله عنه په روایت چې رسول اللهﷺ وفرمایل: لږ او ډېر یو لک و څلورویشت زره، ابوذررضي الله عنه بیا پوښتنه وکړه چې په څومره شمېر رسولان دي؟ رسول اللهﷺ وفرمایل درې سوه او درویشت تنه چې لومړی یې آدمعليه السلام او وروستی یې حضرت محمدﷺ دی. هغه پیغمبران چې په قرآن کریم کې یې نومونه راغلي دا دي:

آدمعليه السلام، نوحعليه السلام، هودعليه السلام، ادریسعليه السلام، صالحعليه السلام، ابراهیمعليه السلام، اسماعیلعليه السلام، اسحٰقعليه السلام، یعقوبعليه السلام، یوسفعليه السلام، موسٰیعليه السلام، عیسٰیعليه السلام، ذکریاعليه السلام، شعیبعليه السلام، هارونعليه السلام، یحیٰیعليه السلام، داؤدعليه السلام، سلیمانعليه السلام، الیاسعليه السلام، الیسععليه السلام، ذلکفلعليه السلام، ایوبعليه السلام، یونسعليه السلام، لوطعليه السلام، او محمدﷺ.

هغه پیغمبران چې کتابونه او صحیفې ورباندې نازلې شوې دي: حضرت آدمعليه السلام، حضرت شیثعليه السلام، حضرت ادریسعليه السلام، حضرت ابراهیمعليه السلام، حضرت موسٰیعليه السلام، حضرت داؤدعليه السلام، حضرت عیسٰیعليه السلام او حضرت محمدﷺ.

هغه کتابونه چې پر پیغمبرانو نازل شوي د هغو شمېر یو سل او څلورو کتابونو ته رسېږي چې څلور یې لوی کتابونه، زبور شریف، تورات شریف، انجیل شریف او قرآن عظیم الشان. سل صحیفې چې لس په حضرت آدمعليه السلام، پنځوس په حضرت شیثعليه السلام، دېرش په حضرت ادریسعليه السلام او لس په حضرت ابراهیمعليه السلام نازلې شوې دي. تورات شریف په حضرت

موسیٰ(ع)، زبورشریف په حضرت داؤد(ع)، انجیل شریف په حضرت عیسیٰ(ع) او قرآن کریم په حضرت محمد(ص) نازل شوی دی.

**رسول**: د الله(ج) استازی.

**نبي**: له نبأ څخه د خبرولو، اګاه کولو او اخبار په معنا او اصطلاحاً هغه چا ته ویل کېږي چې د الله(ج) له خوا ورته وحې شوې وي او نوی کتاب یا نوی شریعت پرې نازل شوی نه وي، بلکې د مخکیني کتاب یا شریعت بلنه خلکو ته وکړي، لکه حضرت اسحٰق(ع).

**وحې**: په لغت کې اشاره کولو ته وایي، کېدای شي چې دا اشاره په لاس یا د لیکلو له لارې وي.

او په اصطلاح کې د الله(ج) کلام چې د حضرت جبرائیل(ع) په واسطه یا د الهام په توګه پېغمبر ته واستول شي. په داسې شکل چې پېغمبر ته د شک او تردد ځای پاتې نه شي.

**اکوړ خان یا ملک اکوړی**

اکوړ خان د درویش محمد زوی د خوشحال خان خټک غورنیکه او د خټکو د سرداری بنسټ اېښودونکی دی.

جلال الدین اکبر مغلي امپراتور په ۱۵۵۶ کال کې چې په ټول هند او د افغانستان په ځینو برخو واکمني درلوده، ده د ځینو مهمو سوداګریزو او لویو لارو امنیت او ساتنه لویو زمیندارانو(ځمکوالو) او افسرانو ته سپارله، له دې جملې له اټک څخه تر نوښاره پورې د لویې لارې او شاوخوا سیمو د ساتنې مسوولیت ملک اکوړي ته د جایګیر په توګه ورکړ. ملک اکوړي په کم وخت کې ډېر شهرت وموند او د لنډي سیند په غاړه یې د اکوړه په نامه لویه کلا جوړه کړه، له ده څخه وروسته دا سرداري یې زوی ملک یحیٰی خان بیا شهباز خان او د هغه تر مرګه وروسته خوشحال خان ته ورسېده، چې دغه وخت د مغلي شاهانو په لړۍ کې لومړی شا ه جهان او بیا اورنګ زیب د تخت او تاج څښتن و.

حضرت محمد(ص) ولې تر نورو پېغمبرانو غوره دی؟

حضرت محمد(ص) آخرین پېغمبر یا خاتم الانبیاء دی چې وروسته تر ده بل پېغمبر نه دی رالېږل شوی، ځکه چې د ده رسالت نړیوال او عالم ګیر و او د انساني ژوند ټول اړخونه د ده پر نازل شوي شریعت کې رانغاړل شوي او د بشریت ټول وګړي یې د قوم، سیمې، ژبې، رنګ، نژاد او نورو توپیرونو څخه پرته د اسلام تر بیرغ لاندې له یو بل سره ورونه بللي او له مساوي حقونو، امتیازاتو او مکلفیتونو څخه برخه من شویدي، نو د ډېرو متبرکو آیتونو او نبوي سنتو په نصوصو کې لیدل کېږي چې د اسلام دین د الٰهي آخرین، تلپاتې او کامل دین دی او د الٰهي(ج) قانون په حیث په یوه مناسب وخت او زمان کې نازل شوی چې ټولو انسانانو ته په خپلو مخلوقاتو عزت، کرامت او حضرت رسول اکرم(ص) ته یې په نورو پېغمبرانو فضیلت او غوره والی ورکړی دی.

**اضافي معلومات**

بني هاشم یعنې د هاشم زامن د عربو له طایفو څخه یوه طایفه ده. د هاشم اولاد چې نوم یې عمر و د عبد المناف زوی د قریشو له قبیلې څخه دی. له اسلام څخه دمخه د عربو په منځ کې د یوې شریفې کورنۍ په نامه سره پېژندل کېده. ددغې کورنۍ غړي حاجیانو ته د اوبو ورکولو او مېلمستیا دنده پر غاړه درلوده. عبدالمناف د هاشم پلار د رسول الله(ص) څلورم نیکه او څلور زامن یې درلودل. عبدالشمس د امویانو نیکه، مطلب، نوفل د جبیر بن مطعم نیکه او هاشم (عمرو) چې د پېغمبر(ص) دریم نیکه دی او د بني هاشم د کورنۍ نسبت هغه ته کېږي، د حضرت علي بن طالب او د حضرت عباس اولادونه د هاشم عبدالمناف له نسل څخه دي. د عبدالمناف په زامنو کې تر ټولو د ښه صورت، عزت او وقار څښتن هاشم و. د عبدالمناف زامنو په خپل منځ کې د دې لپاره لنده وچه (پچه) واچوله چې حاجیانو ته به کوم یو اوبه او ډوډۍ ورکړي چې دغه لنده وچه (پچه) د هاشم په نوم وختله او د عمر تر پایه پورې یې دغه دنده سرته ورسوله، وروسته له هغه

ښخه د هغه ورور مطلب دغه دنده په غاړه درلوده، له مطلب ښخه وروسته د هاشم زوی عبدالمطلب د رسول الله ﷺ نیکه په دغه منصب وګومارل شو.
له هغه ښخه وروسته د عبدالمطلب زامنو تر هغه پورې دغه دنده په غاړه درلوده چې اسلام راغی او په دغه وخت کې دا دنده د عباس بن عبدالمطلب په غاړه وه چې د رسول الله ﷺ تره و.
هاشم ډېر شتمن او پتمن سړی و، هغه لومړنی شخص دی چې د حاجیانو لپاره یې په مکې مکرمې کې ماتــه کــړې ډوډۍ (ښوروا) تیاره کړه. د هغه اصلي نوم عمرو دی، دا چې هغه ډوډۍ په ښوروا کې وړه وړه ماته کړه او هغه یې حاجیانو تــه ورکړه، نو په هاشم باندې ونومول شو، هاشم لومړنی شخص دی چې د دوبي او ژمي د مېنې بدلېدو بنسټ یې اېښی دی.
د هغه په اړه راغلي چې هغه شام ته د سوداګرۍ لپاره لاړ او چې کله ېثرب مدینې ته راستون شو د بني عدي بن نجار له یو تن چې عمرو نومېده د هغه د لور سلما سره واده وکړ او څه وخت وروسته شام ته لاړ، د فلسطین په غزه نومي ځای کــې وفات شو، د هغه مېرمن سلما د عبدالمطلب مور وه او عبدالمطلب د رسول الله ﷺ نیکه و، چې پــه ۴۹۷ز. کــال کــې زېږېدلی و.
د هاشم په زامنو کې ډېر معزز (ښاغلی) زوی عبدالمطلب دی. رسول الله ﷺ په کوچنیوالي کې د هغه په غېــږ کــې روزل شوی دی.
څرنګه چې وویل شو د عبدالمطلب مور د بني نجار له کورنۍ ښخه وه او په یثرب کــې اوســېده. عبــدالمطلب هــم د ماشومتوب دوره په دغه ښار کې تر هغه وخته پورې تېره کړه چې تره یې مطلب بن مناف مدینې ته راغی او عبــدالمطلب یې له ځان سره مکې ته بوته او هلته د مطلب(( د هاشم ورور دی، کله چې عبدالمطلب "چې د رسول الله ﷺ نیکه دی چې اصلي نوم یې شیبة دی" مکې ته بوتلو نو د مکې اوسیدونکو به ویل چې غلام یې راوست او نوموړې به یې عبدالمطلب "د مطلب غلام" بلل. چې وروسته بیا پردې نوم باندې مشهور شو)) تر پالنې لاندې و. له همدې امله هغه تــه عبــدالمطلب وایي، له مطلب ښخه وروسته قریشو د خپل قوم مشرتوب عبدالمطلب ته وسپاره. دا چې عبدالمطلب د ښو صفتونو لکــه صبر، حوصلې او ښښنې ښتن و، نو ځکه د دغه مقام وړتیا یې درلوده، هغه د قریشو ځوانانو لپاره یو پــلار او د منځنــي عمر خلکو لپاره ورور و. د هغه په مخ کې د مشرتوب او سردارۍ نښې ښکارېدې. هغه د ټینګې ارادې، ارام، غلــي او د خوشحال طبیعت خاوند و، عبدالمطلب هغه ښوک دی چې د زمزم د اوبو څاه چې د جرهم قبیلې د خپل تسلط په وخــت کې ډک کړی و، د دویم ځل لپاره یې پاکه او ژوره کړه او خلکو د هغې څاه لــه اوبــو ښخــه ګټــه واخیــسته او د اسماعیل عليه السلام یاد یې دوباره د دې څاه په ویستلو سره ژوندی کړ او قریش د عزت او کرامت په نعمت کې ډوب شول.
دغه چاره چې د عبدالمطلب په نوبت سره پیل شوه. د قریشو په شرافت او غوره والي کې نور هم زیاتوالی راغی، خــو هغه داسې ښوک نه و چې په دې لوی کار سره ځان پر خلکو پورته وګڼي.
سیرت لیکونکي د دې خبرې یادونه کوي چې عبدالمطلب د پرله پسې خوبونو په لیدو سره د زمزم کوهی ژور کړ. هاشم ښلور زامن درلودل اسد، ابو سیقي، نضله او عبدالمطلب او پنځه لونې یې درلودې: شفا، ضعیفه، رقیه، خالده او جنه.

**اخځلیکونه**
– الرحیق المختوم (سیرت النبی ﷺ)، لیکوال مولوي صفی الرحمن مبارکپوري، (پښتو ژباړه سلطان محمود صلاح)
_ د یوولسم ټولګي تفسیر شریف، ۱۳۸۹هــ.ل. کال.

# دريم لوست

## د تدريس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
| --- | --- | --- |
| د لوست موضوع: | عبدالرحمٰن بابا (رح) | |
| د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ــ د عبدالرحمٰن بابا د شخصيت او لوړې شاعرۍ په هکله به وپوهېږي.<br>ــ د متن په معنا او مفهوم به پوه شي.<br>ــ متن به سم ولوستلای او سم وليکلای شي.<br>ــ د لوست لغتونه به معنا او په جملو کې به يې وکاروي.<br>ــ د متن د هرې برخې اساسي مقصدبه يو بل ته وويلای شي.<br>ــ په متن کې راغلي ګرامري برخه (د نوم ډولونه) بــه روښـــانه او تشريح کړای شي.<br>ــ د لوست لنډيز به په سمه توګه وويلای شي.<br>ــ د لوست په پوهېدو سره به زده کوونکي د عبدالرحمٰن بابـــا لـــه نيکو اخلاقو څخه درس واخلي او په ورځنيو چارو کې به يې عمـــلاً نورو ته وښيي. | |
| د تدريس لارې | ليکل، لوستل، پوښتنې او ځوابونه، يو کسيز کار، ډله ييز کـــار او فعاليتونه | |
| د تدريس وســـيلې او مرســـتندوی توکي: | درسي کتابونه، توره تخته، تباشير، قلم، د کلمو او لغاتو ليکل شوي کارتونه او چارټونه. | |
| د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، تحريري ارزونه، د څارنې په وســـيله ارزونـــه او د يادداشت کتابچه | |
| د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام او ستړې مه شې، حاضري اخيستل، د ټولګي تنظيم او ترتيب، د تېر درس ارزونه او له نوي درس سره يې تړاو | ۴ دقيقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی دې لاندې هڅوونکې پوښتنې لـــه زده کوونکـــو څخـــه وپوښتي:<br>ــ تاسو په پښتنو شاعرانو کې څوک د بابا په نوم پېژنئ؟<br>ــ تاسو د عبدالرحمٰن بابا کوم بيت اورېدلی او يا يې ويلای شئ؟ | ۶ دقيقې |
| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې متن له ځان سره په پټه خوله ولولي او خپلې غلطۍ دې په ګوته | ــ زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم مـــتن پـــه چوپتيا لولي او خپلې ستونزې په نښه کوي. | |

| | |
|---|---|
| کړي.<br>ــ ښوونکی دې متن په لوړ او مناسب غږ ولولي او د هغه په معنا دې خبرې وکړي.<br>ــ ښوونکی دې له څو تنو زده کوونکو څخه وغواړي چې د متن يوه يوه برخه د ټولګي په مخکې په لوړ غږ ولولي.<br>ــ ښوونکی دې د همدې درس د څلورم فعاليت له مخې زده کوونکي په دوو ډلو ووېشي او ورکړ شوی فعاليت دې پرې ترسره کړي، بيا دې وړ زده کوونکي ښه وستايي.<br>– ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه په وار و غواړي چې د عبدالرحمن بابا د ژوند او شاعرۍ په هکله خبرې وکړي.<br>ــ ښوونکی دې د پښتو د لوست په لومړي او دويم درسي ساعتونو کې په خپله خوښه او په دريمه ورځ د لوست د پای کورنۍ دنده ور وسپاري او په بله ورځ دې بيا وګوري. | ــ زده کوونکي د متن لوستلو ته پوره پاملرنه کوي.<br><br>ــ زده کوونکي د متن په لوستلو کې فعاله ونډه اخلي او د متن په معنا او مفهوم پوره خبرې کوي.<br>ــ زده کوونکي په خپلو اړوندو ګروپونو کې د څلورم فعاليت په ترسره کولو کې خپله ورتيا او مينه ښيي.<br><br>– زده کوونکي په وار سره د عبدالرحمن بابا د ژوند او شاعرۍ په هکله نورو ته معلومات ورکوي<br>ــ زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع پخپلو کتابچو کې ليکي او په کورونو کې پرې کارکوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

(ستر، خوړ، کوږ، ډېر، تور، لوړ، ښايي، ژور) دا ټول اصلي يا عادي صفتونه دي.

(کوچنيوالی، خوږوالی، پياوړتيا، ژوروالی، بشپړتيا) دا ټول مجرد صفتونه دي.

**اصلي صفت**: هغه کلمې چې د نوم څرنګوالی وښيي، لکه: سور، سپين، لوی، کوچنی او نور.

**مجرد صفت**: مجرد يعنې د معنا نوم چې يوازې يو مجرد وصفي مفهوم وي او په پای کې يې (تيا، توب او والی) تاړي راغلې وي، لکه: لېونتوب، پښتونوالی، روغتيا او نور.

## ميرزاخان انصاري

ميرزاخان انصاري د پير روښان لمسی او د نورالدين زوی و. په ۹۸۹ کال کې په تېرا کې زيږيدلی دی. نوموړی په قام اورمړ اود کورنۍ له اړخه انصاري و. په ۱۰۴۰هــ. کال د دکن په جنګونو کې شهيد شوی دی.
له ده څخه د اشعارو ښکلی ديوان پاتې دی.

## دولت لوانی

دولت لوانی عروضي شاعر چې د روښاني تحريک له غښتلو مبلغينو او پياوړو پلويانو څخه شمېرل کېږي د دادالله زوی، دولت الله حسن خېل لوانی دی چې مور يې وردګه وه. د روښاني تحريک مبلغو شاعرانو کې چې مرتب اثار او بشپړ ديوانونه ځينې پاتې دي. يو يې هم دولت لوانی دی چې د پښتو ژبې د ادب په نړۍ کې د دولت لوانی په نامه يادېږي.
کله چې د پښتو نامتو شاعر خوشحال خان خټک (۱۰۲۲ ــ ۱۱۰۰) هــ ق سترګې نړۍ ته پرانيستلې، نود دولت لوانی

عروضي شاعري خپل بهار ته رسېدلې وه او دی د خپلو اشعارو د تدوين په فکر او يا د ديوان په ترتيب بوخت و.

## حافظ شيرازي

شمس الدين محمد حافظ چې په خواجه حافظ مشهور و، د اتمې هجري پېړۍ په لومړۍ لسيزې کې دنيا ته راغلی، د پلار نوم يې بهاء الدين او مور يې د شيراز کازرون وه. د خپل وخت علم و ادب او هنر يې حاصل کړی او قرآن عظيم الـشان يې په ځوانۍ کې له ياده زده کړی و. په پارسي او عربي ژبو کې يې لوړ استعداد درلود. په شعر او شاعرۍ کې يـې هغـه معنوي او قلبي ارادات چې له قرآن څخه حاصل کړی، پوره څرګندېږي.
په غزلياتو کې د ده غزلونه د اعجاز حد ته رسېدلي، له ده څخه ښکلی ديوان راپاتې دی.

## سنايي غزنوي

سنايي غزنوي د غزني په ښار کې په يوې علمي او روحاني کورنۍ کې زېږېدلی دی. ديني زده کړې يې د هغه ځـای پـه مدرسو کې کړي دي سنايي چې د سلطان مسعود غزنوي دربار ته د يوه لنډ وخت لپاره لاره پيدا کړې وه. له دربار څخه بلخ، هرات، نيشاپور او سرخس ته لاړ. نوموړی په خپله شاعرۍ کې د فرخي سيستاني د شعرونو لاروی و، خو وروسـته يې خپل سبک رامنځته کړ، او په دري ادبياتو کې يې د نعتونو او قصيدو بنسټ کېښود د نوموړي اثارو څخـه يـو هـم حديقه الحقيقت دی چې دولس زره بيتونه او لس بابونه لري
چې په دري ژبه کې لومړنی عرفاني اثر دی. دا اثر په حقيقت کې عرفاني دايرة المعارف دی.د سنايي بل اثـر سـيرالعباد دی سنايي له سفرونو وروسته د حج لپاره بيت الله شريف ته لاړ او بيا بېرته غزني ته راغی او د حديقې کتاب يې وليکه.

**اضافي معلومات**

د عبدالرحمٰن بابا د ژوند په اړه مشهور او نامتو ختيځ پېژندونکی ميجر راورټي په ۱۸۶۲ز. کال په لندن کې ((د افغانانو د شاعرۍ نه انتخاب)) په نوم يو کتاب چاپ کړی دی.
د پښتنو د شاعرۍ په دې تاريخي ګلدسته کې راورټي د پښتنو د شپاړسمې پيړۍ نه تر نولسمې پيـړۍ پـورې د منتخبـو شاعرانو کلام په انګرېزي ژبه ژباړلی دی او په دې کتاب کې يې د صوفيانه دمسلک او شاعرۍ په هکله يوه عالمانه مقاله هم ليکلې ده.
ميجر راورټي د پښتو په شاعرانو کې د خپل کتاب لپاره ميرزاخان انصاري، خوشحال خان خټـک، عبـدالرحمٰن بابـا، عبدالحميد مومند، اشرف خان هجري، عبدالقادر خان خټک، کاظم خان شېدا خټک، احمد شاه بابا او خواجـه محمـد بنګښ غوره کړي دي.
په دې ښايسته او صحيحې ژباړې کې راورټي د هر شاعر د کلام د ژباړې سره د شاعر د ژوند لنډ حـالات هـم راوړي دي. راورټي په دې ګلدسته کې چې د عبدالرحمٰن بابا د ژوند په اړه مواد راټول کړيدي. ځينې حقايق پکې کم او زيـات شوي او افسانوي رنګ يې غوره کړی دی.
راورټي ليکي: په پښتنو شاعرانو کې ملاعبدالرحمٰن تر ټولو زيات نامتو او لوی شاعر دی. د هغه شاعري مذهبي او اخلاقي ده او د شاعرۍ مضمون يې په بنيادي توګه عشق الٰهي دی او لکه د نورو شاعرانو د شاعرۍ په شان د عبـدالرحمٰن بابـا شعر هم د تصوف په رنګ رنګين دی. د تصوف په هکله يې داسې زياته کړې: د عبدالرحمٰن بابا په اسلوب کې د سوز و ګداز يو داسې اور او يو داسې قدرتي او فطري سادګي پرته ده چې ساری يې په پارسي شاعرۍ کې نه شي موندلی.
((عبدالرحمٰن بابا غورياخېل دی او غورياخېل د مومندو افغانانو يو ښاخ دی. عبـدالرحمٰن بابـا پـه خټـه مومنـد و. د

عبدالرحمٰن بابا استوګنه په هزار خانی کلي کې وه، دا کلی د مومندو په سیمه کې پـروت دی او دا سـیمه د پېـښور د صوبې په حدودو کې ده.))
عبدالرحمٰن بابا د دین ډېر لوی عالم و او ژوند یې هر وخت په درویشی او الهي ذکر او فکر کې تېراوه، د دنیا له خلکـو سره به یې دومره اړیکې ساتلې چې د ژوند کولو لپاره ضروري وې.
وایي چې عبدالرحمٰن بابا د حمدونو او نعتونو سره ډېره مینه لرله. د مسلمانانو د چشتیه مشرب له درویشانو څخه و چـې د دې سلسلې بنسټ ایښودونکی خواجه معین الدین چشتي دی چې نیکونه یې په عربو کې د چشت نومي کلي اسـتوګن وو.))
داسې معلومېږي د عبدالرحمٰن بابا دا عادت و چې غزل به یې ولیکه، نو دا به یې خپل خاص دوست تـه ورکـړ، نـورو دوستانو به یې هر یوه د عبدالرحمٰن بابا د اشعارو کافي مواد په دې خیال ټولول چې د عبدالرحمٰن بابا د وفات نه پس بـه د عبدالرحمٰن بابا دیوان مرتب کړي.
د عبدالرحمٰن بابا اشعار د ده له وفات څخه وروسته له ډېرو دوستانو سره پاتې شول، خو ځینو کسانو د بېلا بېلو لاملونـو له مخې دد ه له اشعارو سره خپل ناقص او مبتذل شعرونه هم یو ځای کړل او لوی لوی دفترونه یې ترې جوړ کړل، خـو ښه خبره دا وه چې د عبدالرحمٰن بابا شعرونو پوره شهرت موندلی او ځانته یې داسې مجذوب کسان درلودل چې زیـاتره شعرونه یې له یاده وو، نو د عبدالرحمٰن بابا دغه مخلص دوستان وتوانېدل چې د ده شعرونه له نورو اشعارو څخه بېـل او تشخیص کړي، سربېره له دې چې د ده اشعار د وینا ځانګړی طرز او خاص سبک درلود، نو د ده ځینې اشـعار چـې د عبدالرحمٰن بابا په دیوان کې د عبدالرحمٰن د تخلص لاندې راوستي وو، د عبدالرحمٰن بابا اشعار نه بلکې د نورو نـاقص شعرونه وو چې د عبدالرحمٰن بابا له دیوان څخه و ایستل شول او یوازې هغه اشعار یې د عبدالرحمٰن بابا په دیـوان کـې پرېښودل، کوم چې واقعي د عبدالرحمٰن بابا اشعار وو او دغه شان د عبدالرحمٰن بابا په وفات پسې د عبـدالرحمٰن بابـا صحیح دیوان مرتب شو چې تر نن ورځې پورې شتون لري، خو تر اوسه پورې د عبدالرحمٰن بابا د دیوان په بـېلا بېلـو نسخو کې فرق لیدل کېږي. د ځینو نسخو په غزلونو کې یو نیم بیت کم و زیات دی او ځینې داسې غزلونه هم شته چـې په ځینو نورو کې نشته. د عبدالرحمٰن بابا د دیوان شپېته بېلا بېلې قلمي نسخې جمع شوې وې او دا نسخې د یوې زمـانې یا د یوه وخت نه وې، بلکې په بېلا بېلو وختونو کې لیکل شوې وې او ځینې پکې داسې نسخې هم وې چې د عبدالرحمٰن د مړینې په نژدې وختونو کې مرتب شوې وې او دا هغه نسخې وې چې د عبدالرحمٰن بابا خوړو او مخلـصو دوسـتانو د تحقیق او تجسس نه پس تیارې کړې وې او د عبدالرحمٰن بابا دیوان یې ورنه په یوه دفتر کې مرتب کړی و.
ځینې وایي چې عبدالرحمٰن بابا د خوشحال خان خټک هم عصر و او دا هم وایي چـې د دوی ترمنځـه درې شـاعرانه مباحثې هم شوې دي، خو ما ته دا خبره صحیح نه ښکاري، ځکه معلومېږي چې د خوشحال خان د ژوندانه په موده کـې عبدالرحمٰن بابا لا کوچنی هلک و او د عبدالرحمٰن بابا د شعر زمانه د خوشحال د لمسي افضل خان سره سمون خوري.
افضل خان د افغانانو ډېر مشهور او ټولنیز کتاب تاریخ مرصع مؤلف دی، سربېره له دې افضل خان نور د قدر وړ کتابونه هم لیکلي دي.
دا خبره چې عبدالرحمٰن بابا د خوشحال خان خټک هم عصره و، په دې وجه هم غلطه ښکاري چې د ګلخان او جـمال خان پېښه چې عبدالرحمٰن او عبدالحمید دواړو په خپلو دیوانونو کې ورته اشاره کړېـده د هجـري کـال ۱۱۲۳ او د زیږدیز کال ۱۷۱۱ کې پېښه شوېده، یعنې د خوشحال د مرګ نه پنځه ویشت کاله وروسـته ده چـې د خوشـحال د شاعری زمانه د عبدالرحمٰن بابا دشاعری زمانه نه شي کېدای. بل دلیل د دې خبرې خلاف چې خوشحال خان خټـک د عبدالرحمٰن بابا هم عصر و، دا هم کېدای شي چې عبدالرحمٰن خو د دنیا نه کناره ګیري اختیـار کـړی وه د غریبـی او

درویشی ژوند یې تېرولو، نو دا عقل مني چې عبدالرحمٰن به خوشحال ته د شاعرانه مقابلې دعوت ورکړی وي، ځکه چې خوشحال خان د یوې زورورې قبیلې سردار او په خپلې زمانې کې د شاعرۍ په برخه کې یې هم شهرت درلود.))

((د عبدالرحمٰن بابا د لوڼو له خوا ځینې اولادونه اوس مهال د بهادر په کلي کې اوسي، دا کلی هم د مومندو په سیمه کې پروت دی، خو د عبدالرحمٰن یوازې یو زوی و او د زوی له طرفه د عبدالرحمٰن بابا د اولادونو سلسله پخوا ختمه شوېده.))

سربېره له راوړتې څخه د عبدالرحمٰن بابا په اړوند د پټې خزانې مؤلف محمد هوتک هم څه لیکلي دي. مؤلف محمد هوتک عبدالرحمٰن بابا مومند بولي. د پلار نوم یې عبدالستار و او د بهادر کلي اوسېدونکی و. پټې خزانې د عبدالرحمٰن بابا د پیدایښت کال ۱۰۴۲ ښیي او د مړینې کال یې ۱۱۲۸ لیکلی دی عبدالرحمٰن بابا د ملا محمد یوسف شاګرد و، د فقه او تصوف علم یې له ده څخه زده کړی و او د ملا محمد یوسف د شاګردۍ څخه وروسته بیا کوهاټ ته لاړ او هلته یې د لویو عالمانو شاګردي کړې ده، خو دنیا یې په ځوانۍ کې پرېښې او د درویشۍ او فیقرۍ ژوند یې اختیار کړی و.

د پټې خزانې مؤلف راوړي دي چې عبدالرحمٰن بابا یو عالم، او عابد سړی و او ډېر شعرونه یې د الله پاک په مینه کې ویلي دي او په پښتنو کې په عبدالرحمٰن بابا مشهور دی.

د پېښور په هدیره کې ښخ دی عام او خاص خلک یې زیارت کوي، د ده شعرونه لولي، د عبدالرحمٰن بابا د شعر او غزلو دیوان موجود او ډېر پیدا کېږي.

پادري هیوز لیکي چې عبدالرحمٰن بابا د مومندو د بهادر کلي اوسېدونکی و او عبدالرحمٰن د مومندو د ابراهیم خېلو له ښاخ سره اړیکې لري.

اخځلیکونه


_ میرزاخان انصاري دیوان

– د دولت لواني دیوان

– د عبدالرحمن بابا دیوان.

– دیوان حافظ

_ همیش خلیل، ساهو ادب.

_ محمد اکبر سنا غزنوي، تاریخ ادبیات دري.

## څلورم لوست

### د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | بدنیتي (ولسي کیسه) | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې | زده کوونکي به د لوست په پای کې وکولای شي چې لاندې موخې ترلاسه کړي<br>ــ د بدنیتۍ په معنا او مفهوم به وپوهېږي.<br>ــ د متن څخه به مطلب واخیستلی شي.<br>ــ په متن کې راغلې کلمې او عبارتونه به سم ولوستلای شي.<br>ــ د درس راوړل شوو لغتونو په معنا به پوه او په جملو کې به یې وکاروي.<br>ــ له متن څخه چې کومه مثبته نتیجه اخلي په خپل ژوند کې به یې عملي کړي.<br>ــ د فعل په ګرامري مفهوم او تعریف به وپوهېږي او له نورو کلمو څخه به یې توپیر کړای شي.<br>ــ د لوست لنډیز به یو بل ته وویلای شي. | |
| د تدریس لارې | لیکل، لوستل، پوښتنې او ځوابونه، یو کسیز کار، ډله ییز کار او فعالیتونه | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتابونه، توره تخته، تباشیر، قلم، د کلمو عبارتونو او نورو اړوندو ستونزمنو برخو په کارتونو کې لیکل | |
| د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د ځارنې په وسیله ارزونه او د یادداشت کتابچه | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام او ستړي مه شي، حاضري اخیستل او د کورنۍ دندې کتنه | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی دې لاندې هڅوونکې پوښتنې له زده کوونکو څخه و پوښتي:<br>ــ تاسو د بدنیتۍ په هکله کومه کیسه چې ښه پایله ونه لري ویلای شئ؟<br>ــ د تاسو په فکر په ژوند کې څنګه کولای شو چې د بدنیتۍ له بدو پایلو څخه ځانونه وژغورو؟ | ۶ دقیقې |
| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
| ــ ښوونکی دې د زده کوونکو تر هڅولو وروسته متن په لوړ غږ ولولي او د هغه د مطلب په برخه کې دې پوره خبرې وکړي. | ــ زده کوونکي د ښوونکي د متن د لوستلو په وخت کې د کلمو سم تلفظ ته پاملرنه کوي.<br>ــ زده کوونکي متن په چوپتیا سره لولي او ځانونه پرې | |

| | |
|---|---|
| ـ ښوونکی دې د زده کوونکي په پټه خوله د متن لوستلو ته راوبولي.<br>ـ ښوونکی دې څو زده کوونکي په وار سره وهڅوي چې د متن یوه برخه ولولي او پاتې کسان دې د معنا او مفهوم په برخه کې ونډه واخلي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکي په پنځو ډلو وویشي او د اووم فعالیت هره برخه دې یوې ډلې ته ورکړي چې سرته یې ورسوي او په پای کې دې له هرې ډلې څخه یو تن خپله پاڼه نورو ته ولولي.<br><br>ـ ښوونکی دې د پښتو لوست په لومړي او دویم درسي ساعت کې په خپله خوښه کورنۍ دنده ورکړي او په دریم ساعت کې دې د لوست د پای کورنۍ دنده وروسپاري او په راتلونکي ساعت کې دې وګوري. | پوهوي.<br>ـ څوزده کوونکي د متن په لوستلو کې د خپلې وړتیا په ښوونې سره برخه اخلي او پاتې یې د مفهوم په ویلو کې ونډه اخلي.<br>ـ زده کوونکي په خپلو ډلو کې د اړوند فعالیت د ترسره کولو لپاره زیار باسي او د سیالۍ په ډول غواړي چې په لیکنه کې ښه والی منځ ته راشي.<br><br>ـ زده کوونکي له سپارښتنې سره سم د کورنۍ دندې موضوع پخپلو کتابچو کې لیکي او په کورونو کې یې بشپړوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

| لغتونه | معناوې |
|---|---|
| سپېڅلی | پاک |
| ناوړه | ناروا، بد |
| وګړي | خلک |
| مهال | وخت |
| زغمل | تحمل کول |
| پتیل | تصمیم نیول، هوډ کول |
| برید | پیل، حمله |
| لورېدل | روا داري، دریغ نه کول |
| ښېګڼه | خوبي، ښه والی |

**فعل**

فعل د زماني یا مهال له مخې درې ډولونه لري.

ـ **ماضي یا د تېر مهال فعل**: هغه کار یا عمل چې په تېره موده کې ترسره شوی وي، لکه: احمد سبق لوستلی و، ما کتاب ولوست، ښوونکي درس درکړی دی او نور... .

ـ **اوس مهال یاد حال فعل**: هغه کړنه چې په اوس مهال کې جریان ولري، لکه: زه کتاب لولم، احمد ډوډۍ خوري، ښوونکی درس لولي.

ـ **راتلونکی مهال یا مستقبل فعل**: هغه کړنه یا عمل چې په راتلونکي زمانې پورې تړلی وي، لکه: زه به کتاب ولولم، احمد به راشي، دا کتاب به خلاص شي.

فعل د وجهه او شک له مخې هم ځانته ډولونه لري.

**۱ـ د فعل اخباري وجه:** هغه فعل چې له یوې پېښې څخه خبر ورکوي، لکه: احمد په امتحان کې بریالی شو.

**۲ـ امري وجه:** چې د یوه کار کول یا نه کول د خواهش په ډول او یا د امر په صورت کې بیان کـړي، لکـه: ژر ولاړ شه، ماته کتاب راوړه!

**۳ـ التزامي وجه:** د فعل هغه شکل چې د یوه کار کول، په شک او تردید سره بیان کړي، لکه: احمد به په آزموینې کـې بریالی شي.

**۴ـ د فعل مصدري وجه:** په دغه صورت کې له فعل څخه مخکې د فعل معاون، لکه: ښایي، باید، کولای شي، شـاید او نورې کلمې راځي، مثالونه یې دا دي:

باید ووایي، شاید راشي، رابه شي، کولای شي ولیکي او نور.

**۵ـ د فعل وصفي وجه:** د فعل هغه شکل دی چې د فعل حالت او څرنګوالی یا د فاعل وضعیت ښیي: احمد ټولګي ته په خندا راغی، نازو له کوره په ژړا راووته، ما دا مضمون په دقت ولوست.

**فعل د جوړښت له مخې**

**فعل مثبت او منفي ډولونه لري**

**مثبت فعلونه**: هغه دي چې د یوه کار کول یا کېدل ښیي، لکه: ما سبق ولوست، احمد راغی، باران وورېده او ځمکـه ټوله شنه شوه.

**منفي فعلونه**: چې د یوه کار په نه کېدلو یا نه کولو دلالت وکړي، لکه: احمد را نه غی، زه نه ځم، درس نـه لوسـتل کېږي.

**معلوم فعلونه**: چې د یوه فعل فاعل معلوم وي، لکه: احمد راغی، معلم کورنۍ دنده ورکړه.

**مجهول فعلونه**: چې د یوه فعل فاعل معلوم نه وي، لکه: هلک ووهل شو، غر اوربدل کېږي او نور.

**اضافي معلومات**

**الله تعالیٰ** په قرآن عظیم الشان کې د بخل، بدنیتۍ او حسادت ناوړو صفتونو په هکله یادونه کړې او په ډاګه کړې یې ده چې الله تعالی د دې صفتونو لرونکي نه خوښوي.

ډېرو مبارکو آیتونو په مال او علم کې بخل کول او بدنیتي ناوړه کارونه بللي او د ټولو وګړو او ټولنې لپاره یې د فـساد لاملونه ګڼلي دي.

اهل کتابو چې د اسلام د پیغمبرﷺ صفتونه په خپلو کتابونو کې ښه پېژندل او پوره پرې پوهېدل، خو نوروڅخه یې پټـول چې د هغو دا کار تر ټولو ناوړه بخل شمېرل کېږي.

همدارنګه د مدینې یهودیا نو به انصارو ته ویل: له محمدﷺ او یارانو سره یې مالي مرستې مه کوئ چې تاسو به د فقـر او بېوزلۍ سره مخ شئ.

الله تعالیٰ د دې بخل او شومتیا په وړاندې دوی ته د ډېر سخت عذاب زیری ورکړی او فرمایي: ((واَعتدنا للکـافرین عذاباً مهیناً)).

الله تعالیٰ د منافقانوهغه ډله چې په الله او د آخرت په ورځ ایمان نه لري، خو د خلکو د غولونې او ریا په خاطر څـه مالونه صدقه کوي ملامته کړي او د شیطان دوستان یې معرفي کړي دي. په پای کې دوی ته د بـدو پـایلو او دردنـاک عذاب وعده ورکړې.

همدارنګه د ابي هریره له قول څخه چې نبي کریمﷺ فرمایي: ((له حسد او بدنیتۍ څخه ځان وساتئ، ځکه حسد نیکي

داسې خوري، لکه اور چې لرګي خوري، ابوداؤد))
بل ځای رسول اللهﷺ فرمايلي دي: ((په خپلو منځونو کې د ورورولۍ اړيکې مه غوڅوئ، يو بل ته شا مه اړوئ، له يو بـــل سره رخه او کينه مه کوئ، په خپلو منځو کې ورونه او د اللهﷻ بندګان واوسئ!، د خپل ځان په شان په نورو هم پېرزوينه ولرئ، په خپل مسلمان ورور باندې ظلم مه کوئ. د نورو عيبونه او نيمګړتياوې مه رسوا کوئ! د چا سپکاوی مه کـــوئ، د يوه سړي لپاره همدومره شر بس دی چې خپل مسلمان ورور سپک کړي.
د يوه مسلمان ورور په بل مسلمان باندې مال، وينه او ناموس حرام دی. د مسلمان ورور په غـــم مـــه خوشـــحالېږئ، الله پاکﷻ به په هغه ورحمېږي او تا به پرې اخته کړي، صحيح مسلم.))
د مهربان اللهﷻ د خاصو بنده ګانو يو بل صفت اعتدال او ميانه روي ده چې له اسراف او بخل څخه پرهېـــز وکـــړي، د اللهﷻ له ارشاداتو څخه دي چې اسراف او بخل دواړه ناوړه خويونه دي او دواړه خويونه د وګړو او ټولنې د فساد لامـــل ګرځي.
اسراف د افرادو او ټولنې د نفسونو او مالونو فاسدوونکي دي. همدا راز بخل او بدنيتي د ټولنې د آبادۍ او سوکالۍ پـــه لاره کې له مال څخه د ګټې د نه اخيستلو لامل ګرځي او په ټولنه کې د زيان او ستونزو د رامنځ ته کېدو وسيله ده.
**ولسي کيسې:** زموږ د ولسونو د شفاهي ادبياتو په لويه زيرمه کې ولسي کيسې هم شاملې دي چې له يوه نسل څخه بل ته خوله په خوله ليږدول شوی ولسي کېسې په هره ټولنه کې لکه د فولکلوري کېسو په شان رامنځته شوي دي او ځانته خپل خصوصيات لري.
په ولسي کېسو کې جملې لنډې لنډې وي او زياتره د يوه انسان يا د يوه حيوان يا الوتونکي له خولې ويل کېږي. پـــه دې کېسو کې اصلي موخه تربيوي او روزنيزه خوا وي. په دې کېسو کې د اخلاقي او روزنيزو خواوو تر څنګ انتقادي خـــوا هم شامله وي، او اصلي موخه يې د ژبې د اصولو او قواعدو زده کړه د ټولنې د وګړو په تېره بيا د ځوان نسل اصـــلاح او سمې لارې ته برابرول دي.
**اخځليکونه:**
ـ د يوولسم ټولګي تفسير شريف.

# پنځم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
| --- | --- | --- |
| د لوست موضوع | پښتو نحوه | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې | زده کوونکي به د لوست په پای کې وتوانېږي چې لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ د نحوې په لغوي معنا او مفهوم به وپوهېږي.<br>ـ د نحوې ارزښت به په خبرو اترو کې په ځرګنده توګه وښودلای شي.<br>ـ د متن په معنا او مفهوم به وپوهېږي.<br>ـ د متن کلمې او جملې به سمې ولوستلای شي.<br>ـ د لوست لغتونه به په جملو کې وکارولی شي.<br>ـ د نحوې په پوهېدو سره به د جملو نیمګړتیاوې له منځه یوسي.<br>ـ د لوست لنډیز به په ساده جملو کې ولیکلای شي.<br>ـ د لوست د موضوع په اړه کې به له یو بل سره خبرې وکړای شي.<br>ـ په دې به وپوهېږي چې د نحوې په پوهېدو سره په خپلو لیکنو او لوستلو کې د تېروتنو مخنیوی وکړي. | |
| د تدریس لارې | لیکل، لوستل، پوښتنې او ځوابونه، په یوازې توګه کار، ډله ییز کار او فعالیتونه | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتابونه، توره تخته، تباشیر، قلم، د کلمو عبارتونو او نورو برخو لیکل شوي کارتونه | |
| د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د څارنې په وسیله ارزونه او د یادداشت کتابچه | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام او ستړي مه شي، حاضري اخیستل او د کورنۍ دندې کتل | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی دې لاندې هڅوونکې پوښتنې له زده کوونکو څخه وپوښتي<br>ـ تاسو د نحوې له کلمې او مفهوم سره آشنا یاست اوپه دې اړه څه ویلای شئ؟<br>ـ د تاسو په فکر نحوه له څه شي څخه بحث کوي؟ | ۶ دقیقې |
| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
| ـ ښوونکی دې د زده کوونکو تر هڅولو وروسته د درس متن د کتاب له مخې په لوړ او مناسب آواز ولولي او د معنا او مطلب په | ـ زده کوونکي لوستلو ته پوره غور او دقت کوي، د کلمو او جملو په سم تلفظ ځانونه پوهوي. | |

برخه کې دې څرګندونې وکړي.

ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د متن لوستل په پټه خوله داسې ترسره کړي چې نورو ته مزاحمت ونــه شـــي او معنا ته دې ځير شي.

ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته داسې لارښوونه وکړي چې په وار سره د لوست يوه يوه برخه د ټولګي په مخ کې ولـــولي او پـــاتې کسان دې د هغه په معنا خبرې وکړي او ځينې نور دې د لغتونـــو معنا ووايي او په جملو کې دې وکاروي.

ــ ښوونکی دې زده کوونکي په درو ډلو وويشي، يوې ډلې ته دې د لوست پنځم فعاليت، دويمې او دريمې ډلې ته دې شپږم فعاليـــت وسپاري. په هره برخه کې دې زده کوونکي وهڅول شي، بيا دې د هرې ډلې استازی د ټولګي په وړاندې راشي او خپلې جملـــې دې ولولي.

ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته په لومړي او دويم درسي ســـاعت کې په خپله خوښه او په دريم درسي ساعت کې دې د لوســـت د پای کورنۍ نده وسپاري.

ــ زده کوونکي له لارښوونې سره سم متن په پټــه خوله لولي، په معنا يې ښه فکر کوي او ځانونه پرې پوهوي.

ــ زده کوونکي د متن په لوستلو، خبرو کولـــو او دکلمو په معنا کولو کې برخه اخلي او خپله وړتيـــا ښيي او د سيالۍ په توګه دا فعاليتونه ترسره کوي.

ــ زده کوونکي په اړوندو ډلو کې خپل فعاليتونـــه ترسره کوي، خپله مينه او وړتيا له نورو ډلو سره د سيالۍ په توګه ښيي.

ــ زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې وليکي او په کورونو کې دې پرې کار وکړي.

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

تکميم: تکميم يو داسې ګرامري شکل ته ويل کېږي چې د بلې لويې ګرامري برخې جز نه وي، يعنې تر ټولو کـــوچنی او معنا لرونکی ګرامري شکل دی، نو ويلای شو چې تکميم تر ټولو کوچنی، نه تجزيه کېدونکی او يو با مفهومـــه مـــستقل توکی دی چې په نحوه کې لويه برخه احتوا کوي.

**اسمي ترکيبونـه**: چې د نومونو له ترکيب څخه منځ ته راغلي وي، لکه: ګل باغ، شکر دره، اختر محمد، زرځانګه، فيل مرغ، شبنم.

**اضافي ترکيبونه**: چې دوه نومونه د (د) په واسطه ارتباط ولري، لکه: د کابل پوهنتون، د خوشحال کليـــات، د بـــاران اوبه، د آسمان ستوري.

**توصيفي ترکيبونـه**: دوه يا اضافه له دوو نومونو څخه داسې ترکيب جوړ کړي چې لومړۍ برخه يې صـــفت او دويمـــه برخه يې موصوف وي، لکه: لايق شاګرد، ښايسته پېغله، تورې سترګې، ډېر عالي کتاب او نور ... .

**عددي ترکيبونه**: هغه ترکيب چې له عدد او معدود څخه جوړ شوی وي، لکه: دوه سترګې، څلورم پوړ، شل تنه سړي.

**قيدي ترکيبونه**: چې په ترکيب کې اساسي برخه قيد وي، لکه: ډېر ژر، ژړانده غږ، هغه وخت، څـــو ســـاعته، ډېـــرې ورځې، پر مختګ، پس انداز.

**تاکيدي ترکيبونه**: لکه حتمي کار، ضروري خبره، بې ګومانه راتګ.

**اداتي ترکيبونه**: په پښتو، سرکې، له زړه څخه، تا سره، بې واکه.

اضافي معلومات

په پښتو ژبه کې (نحوه او سينتيکس) دواړه اصطلاحګانې د ټاکلي ګرامري مفهوم او معنا لپاره کارول کېـــږي او د پـــښتو

ژبې په ګڼ شمېر ګرامرونو کې لیکل شوي. عربي اصطلاحات (صرف، نحوه) چې د معنا او مفهوم له مخې د یوه تیــاکلي مقصد لپاره استعمالېږي هم تر اوسه پورې کارول کېږي، لکه څنګه چې نحوه یا Syntax هغه علم دی چې مــوږ تــه د جملې د جوړولو قاعدې او د هغې د اجزاوو ترتیب او دکلمو ترمنځ رابطه له یو بل سره رابښیي.

همدارنګه ویلی شو چې مورفولوژي او سینټکس د خپلو ځانګړو اصطلاحګانو او خصوصیاتو په درلودلو سره په تیوریتیکي لحاظ که له یوې خوا سره بېل دي، نو له بلې خوا یو تر بله اړیکې هم لري.

د یوې ژبې د نحوي واحدونو او نحوي کټګوریو اصلي برخه جمله ده، دلته دا سوال رامنځ ته کېږي چې جمله د ژبــې د نورو نحوي واحدونو څخه څه توپیر لري؟

د ژبې نور واحدونه، لکه (فونیم، مورفیم، کلمه، ترکیب یا غونډ) په ځانګړې توګه پوره مطلب نه رسوي یا په ســاده ډول وایو: موږ پرته له جملو څخه مطلب ترلاسه کولای نه شو.

## د جملې جوړښت او رغنده توکونه (اجزا)

زموږ مطلب د جملې هغه جوړښت دی چې یوه بشپړه جمله د کومو برخو او توکونو څخه رغېدلې ده. د دغــو برخــو او اجزاوو د څومره والي له مخې د جملې ترکیب، جوړښت،او ډولونه څرګندېږي. په هرې جملې کې د کلمو اومورفیمونــو اندازه او شمېر توپیر لري.

په دې معنا چې جملې له دوو او یا هم له زیاتو کلمو څخه جوړه شوې وي.

## د بڼې او جوړښت له مخې د جملې ډولونه

ساده او مرکبې یا (ګډې) جملې

ساده جملې هغه جملې دي چې له یوه فعل او فاعل څخه جوړه شوې وي، یعنې یو اسمي عبارت او یــو فعلــي عبــارت ولري، لکه: احمد وایي، زده کوونکی راغی.

او کله هم داسې وي چې مبتدا یا خبر یې له څو لنډو عبارتونو څخه جوړ شوی وي، لکه: افغانــستان لــه درې لــسیزو جنګونو سره سره په وروستیو کلونو کې څه پرمختګونه کړي دي.

**مرکبې یا امیخته جملې**: هغه جملې دي چې له څو سره مربوطو فقرو جوړه شوی وي، لکه: ځینې تکړه زده کوونکي په وزګارو وختونو کې د درس ویلو لپاره یو ځای راټولېږي.

جمله د معنا له مخې هم ډولونه لري:

اخباري جمله، امري جمله، تعجبي جمله، پوښتنیزه جمله او نور ... .

## د جملې عمومي مشخصات او ځانګړنې:

۱ــ په جمله کې دواړه اساسي رکنونه نهاد او ګزاره یا (مسند او مسند الیه) موجود وي چې کله کله مسند او مسند الیــه په جمله کې له یوه څخه زیات وي.

۲ــ د جملې د اجزاوو یا توکو ترمنځ نحوي رابطه موجوده وي.

۳ــ په نورو کوچنیو نحوي توکو ونه وېشل شي، یعنې که تجزیه شي بشپړ مفهوم له لاسه ورکوي.

۴ــ جمله پوره او کامله معنا افاده کوي.


**اخځلیکونه**

– پښتو نحوه، پوهندوی ډاکټر زرغونه، ریښتین زېور.

ــ دستور معاصر زبان پارسي دری، صرف (فونولوژي مورفولوژي) پوهاند دوکتور محمد حسین یمین ۱۳۸۳

## شپږم لوست

**د تدریس وخت**: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| **د لوست مو ضوع** | ورزش | |
| **د زده کړې (پوهنيزي، مهارتي او ذهنيتي) موخې** | د لو ست په پای کې زده کوونکي به لاندې مو خې تر لاسه کړي.<br>– متن به سم ولوستلای او د ورزش په ارزښت به خبرې وکړای شي.<br>– دورزش په مفهوم او ګټو به و پوهیږي.<br>– د ورزش په ډولونو به و پوهيږي.<br>– له ورزش سره به یې مینه پیداشي.<br>– د ورزش کول به پخپلو ورځنیو چارو کې شامل کړي.<br>– د لوست د پای فعالیتونه به په یوازې تو ګه ځواب کړی شي. | |
| **د تدریس لارې** | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یوکسیزاو ډله ییز فعالیت، خبرې کول، | |
| **د تدریس وسیلې او مرستندویه توکي** | کتاب،کتابچه، تخته، تباشیر، د امکان په صورت کې ورزشي انځورونه | |
| **د ارزونې لارې** | دکورني کار لیدل او د تېر درسي ساعت ارزونه او د یادداشت کتابچه | |
| **د زده کړې او تدریس فعالیتونه** | سلام اچول، احوال پوښتنه، دحاضري اخیستل، د کورنۍ دندې کتنه، د تېرلوست ارزونه اود نظافت لیدل | ۴ دقیقې |
| **د انګیزې را منځ ته کول** | – ښاغلی ښوونکی دې نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړي<br>– تاسو په خپل کور او کلي کې څه ډول لوبې کوئ؟<br>– لوبې تاسې ته څه ګټه لري؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | دزده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| .– ښوونکی دې لوست په لوړ او مناسب غږ ولولي.<br>– ښوونکی دې څو زده کوونکو ته سپارښتنه وکړي چې د متن یو یو پراګراف ولولي او ښوونکی دې څارنه وکړي.<br>– ښوونکی دې زده کوونکي په ډلو وو یشي او هرې ډلې ته دې دنده ورکړي چې د ورزش د ګټو په اړه هر یو څو دقیقې خبرې وکړي او ښوونکی دې زده کوونکي په ښو الفاظو لکه شاباس، ډېرښه، افرین باندې وستایي | – زده کوونکي لوست ته غوږ نیسي د متن جملو، او کلمو ته ځیرکېږي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي له لار ښوونې سره سم یو یو پراګراف لولي.<br>– زده کوونکي له سپارښتنې سره سم، هر یو دورزش د ګټو په اړه خبرې کوي، ښوونکی هغه اوري او ورسره مر سته کوي. | |

| | |
|---|---|
| – ښوونکی دې څو زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د ټولګي مخې ته را شي او پر تختې باندې نوې کلمې په جملو کې و کاروي. | – څو زده کوونکي د لارښوونې سره سم د تختې مخې ته راځي او کلمې په جملو کې کاروي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکوته لارښوونه وکړي چې هريو دې د خپلې خو ښې ورزش نوم واخلي اود هغه په هکله دې نوروته معلومات ورکړي، | – زده کوونکي د هغه ورزش په اړه چې ور سره مینه لري نوروته معلومات ورکوي ښوونکی ورسره مرسته کوي. |
| – ښوونکی دې دوه تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته را وغواړي د لو ست د مفهوم په اړه دې د سوال او ځواب په ډول فعالیت تر سره کړي. | – زده کوونکي د لارښوونې سره سم دوه کسيزه فعالیت د سوال او ځواب په تو ګه تر سره کوي |
| – ښوونکی د څو پوښتنو په کولو سره خپل لوست ارزوي. | – زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د ارزونې پوښتنوته ځوابونه وايي. |
| – ښوونکی دې د متن د لنډيز په اړه له زده کوونکو څخه وپوښتي. | – زده کوونکي د ښوونکي څرګندونو سره سم د متن د لنډيز په ويلو کې خپله ورتيا ښيي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکوته د پښتو لوست په لومړي او دويم درسي ساعت کې په خپله او په دريمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ د نده وروسپاري. | – زده کوونکي په کورنۍ دندې ځانونه پوهوي په کتابچوکې يې ليکي او بيا يې په کورنوکې بشپړوی. |

**د متن د ستونزمنو بر خو روښانول**

**واليبال:** داهم د لوبو يو ښه ډول دی چې زموږ د هېواد په ګوټ ګوټ کې ځوانان پرې بوخت دي. نوموړې لوبه ځانته يو ميدان لري. د ميدان په منځ کې يو جال دی چې يوه ډله د جال يواړخ ته او بله يې د جال بل اړخ ته دريږي. د لو بغاړو شمېر يې دولسو کسانوته رسېږي. دا لوبه د سيالۍ په توګه د د وو ټيمونو تر منځ د توپ په اچولوسره تر سره کيږي.

**د ورزش تاريخچه:**

له ډېرې پخوا زمانې څخه ورزش (بدني روزنه) دنړ ۍ په ټولوهيوادونوکې دود شوې ده.

په يونان کې ۲۷۰۰ کاله دميلاد څخه پخوا د المپيک دوره وه. د غيرې نيولو لوبه هغه لرغونې لوبه ده چې دميلاد څخه پنځه زره کاله پخوا په مصر کې ترسره شوې ده. د جمناستيک تاريخچه په يونان کې له ميلاد څخه ۱۸۱۱کاله پخوا منځته راغلې چې په المان اوسوېډن کې هم دود شوې وه.

**دلامبو وهلو لوبه**

د لامبو وهلو لوبه په هغو هېوادونوکې چې دريابونوته نژدې دي په ښلا ښلو ډولونوتر سره کيږي

**دکشتی (ببړۍ) چلولو لوبه**

په جاپان کې په ۱٦۰۳ميلادي کال کې دببړۍ چلولو لوبه دود وه .

په انګلستان کې په ۱۸۴۸م کال کې د ببړۍ چلولو لوبه دود وه چې په هکله يې کتاب ليکل شوی دی.

**دآس ځغلولو لوبه**

د آس ځغلولو لوبه له ميلاد څخه ۳۰۰۰کاله په خواپه يونان ،ايران او۱۱۷۴کاله له ميلاد څخه دمخه په انګلستان کې منځته راغلې وه.

**د باسیکل چلولو لوبه**

د باسیکل چلولو لوبهٔ په ۱۸۶۰کال په فرانسې، په۱۸۶۲کال په امریکا کې اوپه۱۸۷۱کال په انگلیستان کې دود شوه .

**د لینډۍ لوبه:**د لینډۍ د لوبې تاریخچه له میلاد څخه دمخه نهه پیړۍ پخواد پنځو زروکلونو په شاوخوا کې دود شوې. او بیا یې په ایران، مصر، افغانستان کې دود وموند.

**د بایسکټیال لوبه**

دا لوبه د لومړي ځل لپاره په امریکا کې په ۱۸۹۱کاله د میلاد څخه دمخه دود شوې وه.

**دوزن پورته کولو لوبه**

د وزن پورته کولو لوبه په مصر کې په ٦٨۴میلادي کال کې د ود وه.

**د فوټبال لوبه**

د فوټبال لوبه له میلاد څخه دوه زره کاله دمخه په چین او جاپان کې رامنځ ته شوې وه.

**د سطرنج لوبه**

دالوبه په ۱۷۱٦م کال کې منځته راغلې ده.

**د ټینس لوبه**

دا لوبه په فرانسه کې په ۱۳م پیړۍ کې رامنځته شوې وه.

**د بدمینتون لوبه**

دا لوبه په ۱۹۴۸میلادي کال کې په مالیزیا کې دود شوې وه.

**د هاکي لوبه**

د هاکي لوبه په امریکا ،انګلستان کې له میلاد څخه ۴زره کاله دمخه دود وه .

**د سکي لوبه**

دالوبه په سویډن، ډنمارک کې ډېره پخوا منځ ته راغلې وه.

زموږ په هېواد کې د غېږ نیولو، د تیرې اچولو، د آس ځغلولو، د بایسکل ځغلولو ،وز لوبه او داسې نورې ورزشي لـــوبې مو جودې دي چې د هېواد په هر ولایت کې په بېلا بېلوشکلونو تر سره کېږي.

**اضافي معلومات**

زموږد هېواد په بېلا بېلو سېمو کې ډول ډول لوبې دود دي. ځینې لوبې نړیوالې نه دي، یوازې د یوه هېواد په ځینو ســـیمو کې دود دي. هغه لوبې چې په سېمو کې دود دي سیمه ییزې لوبې ورته وایي.

والیبال، فوټبال، کرکټ، هاکي، ټینس، پهلواني، ځغاسته، لامبو، سوک وهنه، بایسکل ځغلونه نړیوالې لوبې دي.

دغه لوبې لږ ډېرې په ټولو هېوادونو کې دود دي او ډېر مینه وال لري.

خوسی، توپ ډنډه، ډی، کوتی، چینډری، میرګاټې، کربنې، پټپټانی، وزلوبه، پړی کشول او نورې سیمه ییزې لـــوبې دي.

دا لوبې زموږ د هېواد او نورو هېوادونو په بېلا بېلو سیمو او ولسونو کې دود دي.

له دغولوبو څخه ځینې یې د کوچنیانو او زیاتره یې د ځوانانو او لویانو لپاره دي.

په سیمه ییزو لوبو کې ځینې ډله ییزې لوبې دي. ډله ییزې لوبې د دوو ډلو تر منځ د سیالۍ په بڼه تر سره کېږي. ځینې ډلـــه ییزې لوبې دا دي: خوسی، توپ ډنډه، تیره اچول، پړی کشول او نور.

**خوسی**

دخوسي لوبه د وړو هلکانو، ځوانانو او لویانو تر منځ په دوو ډلو کې د سیالۍ په توګه تر سره کېږي او هره ډله ځانته یو میر ټاکي، کله چې ډلې جوړې شي بیا د یوې ډلې د خوسۍ او د بلې ډلې د ډوبۍ ساتلو نو بت وي. خوسۍ په ډله کې یوازې یو کس وي چې د ډوبۍ وهلو هڅه کوي.

لوبه داسې پیل کېږي چې ټول کسان په یوه لاس د خپلې یوې پښې ګو تې داسې نیسي چې د لاس ګوتې د پښو په ګوتو کې ورننوتې او پښه یې غبرګه کړې وي. د خوسۍ واله ډله د خوسۍ مخې ته یوې خواته ولاړه وي. د ډوبۍ واله د ډوبۍ مخې ته ولاړه وي. د ډوبۍ واله ډله هڅه کوي چې خوسۍ ته ځان وروروسوي او د هغې لاس له پښې ایله کړي او یا یې راوغورځوي. که خوسۍ را وغورځي او یا یې لاس له پښې ایله شي نو نوبت بایلي. که خوسۍ ډوبۍ ته ورسېد له او هغه یې په پښه ووهله نو د خوسۍ ډله بریالۍ کېږي.

**توپ ډنډه**

توپ ډنډه هم ډله ییزه لوبه ده. دا لوبه زیاتره ددوو ډلو ځوانانو تر منځ ترسره کېږي. د دې لوبې وسایل له تو کر څخه جوړشوی توپ، د لرګي پلنه دړه او هوار پراخ ډګر وي. دغه دړه (ډنډه) تقریباً نیم متر اوږده وي. تر تیب یې داسې دی چې لوبغاړي دوه ډلې شي. یوه ډله په وچه او لمده سره نوبت واخلي او توپ وهي. هریو دري ځله د توپ وهلو حق لري. بله ډله ورته توپ پورته هواته غورځوي او تر وهلو وروسته یې نیسي. د توپ وهونکي ملګر ي تر ټاکلي ځای پورې منډه وهي. که توپ لرې تللی وي او منډه و هونکی ځان بېرته خپل پخواني ځای ته رارسولای شي؛ نو بېرته هم رامنډه کوي. بله ډله چې توپ یې پورته غورځولی، هڅه کوي چې هغه په هوا کې ونیسي او منډه وهونکی پرې وولي. که منډه وهونکی یې د ټاکلو ځایو نو تر منځه وویشتلی شي نو د هغه نوبت وسوځېد تر هغه وروسته د بل هلک نوبت وي تر هغو چې ټول وسوځي او یالوبه وګټي.

دالوبه کرکټ ته ورته لوبه ده؛ خو د یوې بلې لوبې(بیس بال) سره ډېر ورته والی لري. دغه لوبه له ډېر پخوا راهیسې په افغاني ټولنه کې دود ده.

**چیندرۍ**

چیندرۍ(دمبۍ) د نجونو لوبه ده؛ خو هلکان یې هم کوي. په ټولو ولایتونو کې په لږو ډېرتوپیر سره دود لري.

د دې لوبې لپاره هواره ځمکه او یوه کوچنۍ ګرده ښویه تیږه چې موښۍ یا چکله بلل کېږي په کارده. لوبه داسې تر سره کېږي چې د ځمکې پر مخ د اتو یا زیاتو خانو یو مستطیل رسمیږي، خانې یې په ترتیب سره په دې نومونو یادېږي. لومړۍ، دویمه او دریمه خانه، خور او ورور، دمه او قدم، صحرا او اسمان. په ځینو سیمو کې دا خانې د کوټه، منډو، دوزخ، دمې، اګره او سرپټ په نومونو یادیږي. لوبغاړي موښۍ(ټیک) په ورو ښکلوي او د مستطیل لومړنۍ خانې ته یې اچوي، بیا په یوه پښه لومړنۍ خانې ته ټوپ وهي، او د مستطیل نه یې د باندې راباسي. په همدې ترتیب سره په ټولو خانو کې چکله غورځول کېږي او په یوه پښه ترې په تګ راتګ سره را یستل کېږي. کله چې ټولې خانې خلاصې شي، نو بیایې له لومړۍ خانې نه شروع کوي او په ترتیب سره یې له اولې خانې نه په زوره وهي او بهریې ترې راباسي. په همدې ترتیب تر اخرې خانې پورې دوام ورکوي. که څېرې له اخرې خانې نه یې هم یوه تیندک سره تر اولې خانې پورې چکله (موښۍ) مستقیماً راو یسته، نو دغه لوبغاړې بریالۍ بلل کېږي. او که څېرې لو بغاړې چکله ترنظر لاندې خانې ته وانه چوله یایې پر خط باندې پښه کېښوده او یایې چکله د پښې په وهلو د مستطیل د ښې یا چپ لور خط نه د باندې ویسته، نوبت یې سوځي.

**اخځلیک**

ــ لیکوال هوشنګ فتحي، د چاپ کال ۱۳۷۱هــ.ش.

# اووم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونوسرلیکونه | د مطلبونو شرحه | | وخت |
|---|---|---|---|
| د لوست موضوع | نصیحت | | |
| زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي<br>– د نصیحت په معنا، مطلب او مفهوم به پوه شي.<br>– د نصیحت په ګټو به و پوهیږي.<br>– د نصیحت د لوست په لیکلو او لوستلو به و پوهیږي.<br>– شعر به د شعر په تو ګه ولو ستلی شي.<br>– د نصیحت ارزښت به نورو ته بیان کړای شي.<br>– د لو ست د پای فعالیتونه به په یوازې تو ګه ځواب کړای شي. | | |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه یو کسیز فعالیت او ډله ییز فعالیت. | | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | د لویانود خبرو لیکلي چارټونه، کتابچه، تخته، تخته پـاک، تباشـیر، مارکر، قلم، د نصیحت په اړ د نظم او نثر بـېلا بېـل چارټونـه او د نصیحتونو اړوند کتاب | | |
| د ارزونې لارې | او تحریري ارزونه، د څارنې ارزونه، او د یادداشت کتابچه | | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ، حاضري اخیستل، دکورنۍ دندې کتنـه او د تېـر لوست ارزونه. | | ۴ دقیقې |
| د انګیزې رامنځ ته کول | ښوونکی دې لوست په لاندې پوښتنو پیل کړي.<br>– تاسو ته چا د یوه ښه کار د تر سره کولو لارښوونه کړې؟<br>– څوک به په پښتو ژبه د نصیحت په اړه یو بیت وواییي؟<br>– نصیحت او ربدل او پرې عمل کول څه ګټه لري؟ | | ۶ دقیقې |
| د ښوونکي فعالیتونه | | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
| – ښوونکی دې لوست په لوړ او مناسب غږ ولولي<br>– ښوونکی دې څو زده کوونکي د ټـولګی مخـې تـه را وغواړي او متن دې پرې ولولي.<br>– ښوونکی دې زده کوونکو ته دنده ورکړي چې پـه هغـو لارښونو او نصیحتونو رڼا واچوي چې له خپل ښوونکي څخه يې زده کړي وي<br>– ښوونکی دی زده کوونکوته لارښـوونه وکـړي چـې د نصیحت په اړه یوه یوه د قیقه خبرې وکړي.<br>– ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د فعل دتعریـف او مثالونو په اړه پوښتنې وکړي. | | – زده کوونکي په ځېر سره د متن بیتونو تـه ګـوري او غوږ ورته نیسي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي له لارښونې سره سم متن پـه وار سره لولي.<br><br>– زده کوونکي له لارښونې سره سم په خپل وار یو یـو نصیحت چې زده يې وي خپلو ټو لګیو الوته اوروي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سـره سـم د نصیحت په اړه یوه یوه د قیقه خبرې کوي. | |

| | |
|---|---|
| – ښوونکی دې زده کوونکي په څو ډلو ووېشي او هـرې ډلې ته دې د کتاب د فعالیتونو یوه برخه و سـپاري او دی دې د فعالیت په تر سره کولوکې د هغولارښوونه وکـړي. او په پای کې دې دوی تشویق کړي.<br>– ښوونکی دې د څو پوښتنو په کولو سره لوست وارزوي. | – څو زده کوونکي فعل تعریفوي او د هغه مثالونـه پـر تختې لیکي<br>– زده کوونکي د ښوونکې لارښوونو ته پاملرنه کوي. او په ډله ییز کار کې ونډه اخلې او خپله وړتیا څرګند وي.<br>– زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته مناسـب ځوابونـه وایي. |
| – ښوونکی دې په لومړیو دوو ساعتونوکې زده کوونکوتـه پخپله او په دریمه ورځ د لوست دپای کـورنۍ دنـده ورو سپاري. | – زده کوونکي په کورنۍ دندې ځانونه پوهوي په کتابچو کې یې لیکي او په کورونوکې یې بشپړوي |

**اضافي معلومات**

**نصیحت**

نصیحت د دیني لارښوونکو، پوهانو، مشرانو، مور او پلار هغه ګټورې ویناوې او لارښوونې دي چـې د دوی د پـوهې او تجربو په رڼاکې مونږ په نیکو لارو بیایي او له بدو لارو څخه مو ژغوري.

که په بشري ټولنو کې یو بل ته لارښوونې نه وای نو ټول به د ژوند په تیارو کې ناهیلي وو، همدا غوره لارښوونې دي چې مونږ د ژوند په ټولو اړخونو لاس بری مومو.

غوره خبره داده چې د پوهانو نصیحتونه واورو او هر نصیحت یې د ژوند د بریالیتوب د لارې د ستړې کامیـابۍ زېـرې، وبولو.

په یوولسمې او دولسمې هجري پیړیو کې خو شحال خان خټک او دهغه د کورنۍ غړو (زامنو او لمسیانو) پښتو ژبـې او ادب ته د ستاینې وړ خدمتونه کړي دي. دوی د نظم او نثر کتابونه لیکلي او پښتو ادب یې ډېر شتمن کړی دی.

د خوشحال خان خټک په زامنو کې څو تنه ډېر نومیالي شاعران تېرشوي دي، له هغو څخه یو یې عبـدالقادرخان خټـک دی. عبدالقادرخان خټک د پښتو ژبې د نومیالي شاعر، لیکوال او ملي مبارز خوشحال خان خټک زوی و. په ۱۰۶۳ ه ق کال د پېښور د خټکو د سیمې په اکوړه نومې ځای کې زېږدلی و.

زده کړې یې د خټکو د علمي او فرهنګي کورنۍ په چاپېریال کې تر سره کړې وې او د راپاتې لیکل شوو اثارو څخه یـې دا معلومېږي چې په خپل وخت کې لوی عالم او شاعر و.

د دیني او ادبي علومو ژوره او پراخه مطالعه یې در لوده او داستاد ی تر پوړۍ رسیدلی و. د عبدالقادر خان خټک د ژونـد د حالاتو په باب ډېر معلومات په لاس کې نشته، هغه څه چې د نومونړي له خپلو اثارو او د هغې زماني دنورو لیکوالـو او شاعرانو له لیکلو کتابونو څخه څرګندېږي، دا دي چې د ځوانۍ په لومړیو کې یې له خپل پلار سره دملي مبارزې په لړکې په ځینو جنګونو کې هم برخه اخیستې ده. په وروسته وختونو کې یې

د تصوف او عرفان خواته مخه کړه. ډېر روحاني او معنوي برکتونه یې لا د ځوانۍ په وختونوکې له خپل تره فقیر جمیـل بیګ څخه موندلي وو. د خانۍ او سرداری له چارو سره یې زیاته علاقه نه لرله. د ژوند شپې او ورځې یې د دیني او ادبـي علومو په تدریس، د کتابونو په لیکلو، ژباړلو او د خلکو په معنوي لارښوونو تېرکړې دي. عبدالقادرخان خټک ددې لپاره چې په پښتو ژبه اثار زیات شي اوخلک ګټه ورڅخه واخلي، ډېر اثار یې لیکلي او ژباړلي دي، په ځینو ادبي څېړنو کـې د دغو اثارو شمېر زیات ښو دل شوی دی. تر اوسه د نومونړي دالاندې لیکلي او ژباړلي کتابونه تر لاسه شوي دي

۱ – د شعرونو دېوان په افغانستان او پښتونخواکې څوځله چاپ شوی دی.
۲ – ګلدسته: داد شیخ سعدي شیرازي د ګلستان پښتو ژباړه ده چې په ۱۱۲۴ هـ ق کال یې لیکلې او وروسته چاپ شوې هم ده.
۳ – یوسف زلیخا: دمولاناجامي د یوسف زلیخا پښتوژباړه ده چې په ۱۱۱۲ هـ ق کال تر سره شوې او لومړی ځل د امیر عبدالرحمن خان د واکمنۍ په وخت کې د نوموړي امیر په حکم په ۱۳۱۵ هـ ق کال په کابل کې چاپ شوې ده.
۴ – نصیحت نامه: تراوسه نه ده چاپ شوې.
۵ – څلوېښت حدیثونه: د حضرت محمد (ص) د څلوېښتو حدیثونو منظومه ژباړه ده. تراوسه نه ده چاپ شوې، قلمي نسخې یې موجودې دي.
٦ – قصیده برده: د عربي برده قصیده پښتو ژباړه ده چې نظم شوې ده. داکتاب تراوسه نه دی چاپ، قلمي نسخې یې موجودې دي.
د عبدالقادرخان خټک د راپاتې اثارو له مطالعې څخه معلومېږي چې نوموړی پیاوړی خوږ ژبی شاعر، لیکوال او ژباړن و. د نوموړي د مړینې کال نه دی معلوم. د افضل خان خټک د تاریخ مرصع د یوې یادونې له مخې یې تر ۱۱۲۵ هـ ق کال پورې ژوند یقیني دی.
دعبدالقادرخان خټک څو څلوریځې د هغه د شاعرۍ د بېلګو په توګه ولولئ

ځوانمرد هغه دی چې لکه شمع
د ځان په سولو مجلس کاجمع
د بـــل دپاره کـــه په خنداوي
په مخ یې درومي باران دد مع

ژبه عـــادت کړه په ښوخـــبرو
خبرې ښې دي ښې تر شـــــکرو
د خـــوند مثال یې شکرې وایم
قدرېې ډېر دی تر مر غـــــــلرو

**اخځلیکونه**

۱ – د عبدالقادر خټک ګلدسته
۲ – د عبدالقادر خټک دیوان

## اتم لوست

## دتدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | زرغونه کاکړه | |
| دزده کړې (پوهنیزې مهارتې او ذهنیتی) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي دغه موخې تر لاسه کړي:<br>– زرغونه کاکړه به و پېژني.<br>– د پښتنو د تاریخي او ادبي شخصیتونو په هکله به معلومات پیداکړي.<br>– فعل به و پېژني او په ځینو جملو کې به یې وکاروي.<br>– د ادبي شخصیتونو په هکله به نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>– له لرغونو ادبیاتو سره به بلد تیا پیداکړي او په ارزښت به یې ځو کړښې ولیکلای شي.<br>– د ادبي شخصیتونو په باب به کنفرانس ورکړای شي.<br>– د متن وروستي فعالیتونه به په خپلواک ډول تر سره کړای شي. | |
| د تد ریس لارې | لیکل، لوستل، پوښتنې، ځوابونه، ډله ییز فعالیتونه | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | کتاب،تخته، قلم،تباشیر، تخته پاک، مارکر، او د امکان په صورت کې د پخوانیو ادبي شخصیتونو اثار او لیکنې او پټه خزانه، | |
| د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، تحریري، ارزونه، څارنه او د یادداشت کتابچه | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | ستړي مشي، حاضري اخېستل، د کورنۍ دندې کتنه او د تېر لوست ارزونه. | ۴ دقیقې |
| دانګېزې رامنځته کول | ښوونکی دې د انګیزې د را پیداکولو لپاره یوه یا څو انګیزوي پوښتنې وکړي.<br>– تاسو کله د زرغونې کاکړې نوم اوریدلی و؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې لوست په لوړ او مناسب غږ ولولي.<br>– ښوونکی دې زده کو ونکي پر ډلو وویشي او هرې ډلې ته دې سپارښتنه وکړي چې لوست په ګډه ولولي او ستونزې په ګوته کړي، ښوونکی دې مرسته او څارنه وکړي.<br>– ښوونکی دې درې تنه زده کوونکي راوغواړي لارښوونه دې ورته وکړي چې هریو د زرغونې کاکړې په باب د ټولګي په وړاندې خبرې وکړي ښوونکی دې مرسته او څارنه وکړي. | زده کوونکي د ښوونکي لوستلوته پاملرنه کوي او غوږ نیسي.<br>– زده کوونکي په ډلو کې فعال ګډون کوي او د ستونزو په باب له ښوو نکي پوښتنې کوي.<br>– درې تنه زده کوونکي له لارښوونې سره سم د نورو په وړاندې څو دقیقې خبرې کوي او د ستونزو په اړه له ښوونکي څخه مرسته غواړي.<br>– دوه تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راځي اود | |

| | |
|---|---|
| – ښوونکی دې دوو تنو زده کوونکو ته لارښوونه وکـــړي، چې د زرغونې کاکړې له ليکنو څخه يو، يو مطلب د نـــورو په وړاندې ولولي، ښوونکی دې څارنه او مرسته وکړي.<br>– ښوونکی يوه زده کوونکي تـــه دنـــده ورکـــوي، چـــې دزرغونې د کړو وړو په اړه نورو ته يو کنفرانس ورکړي.<br>– ښوونکی دې  دلوست نوي لغتونه په زده کوونکو باندې وليکي او له هغو څخه د ې وغواړي چې په جملو کې يـــې وکاروي .<br>– ښوونکی دې زده کوونکوته د پښتو لوست په لـــومړي او دويم ساعت کې په خپله خوښه او پـــه دريمـــه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده وروسپاري. | زرغونې کاکړې له ليکنو څخه يو، يومطلب لولي.<br><br>– يوزده کوونکی د ټولګي مخې ته راځـــي اود نوروپـــه وړاندې د زرغونې کاکړې په اړوند کنفرانس ورکوي.<br>– زده کوونکي د لغتونو په معنا ځانونه پو هوي او هغه په جملو کې کاروي.<br>– زده کوونکي د کورنۍ دندې موضـــوع ليکـــي او پـــه کورونو کې يې تر سره کوي. |
| **د ستونزمنو برخو روښانول**<br>۱– رياضت: د نفس د پاکولو، ښو اخلاقو کسبول. د تفکر، عبادت او پرهيز ګارۍ لپاره ګوښه کېناستل.<br>۲– پنجوايي: د کندهار ولايت يوه ولسوالي ده چې ټول اوسېدونکي يې په پښتو ژبه خبرې کوي.<br>۳– سعدي: شيخ مصلح الدين سعدي د دري ژبې له لويو شاعرانو څخه دی. په اومه هجري پېړۍ په شېراز کې زيږدلـــی او خپلې زده کړې يې د بغداد په نظاميه کې سر ته رسولې. په تصوف کې د شيخ شهاب الـــدين عمـــر ســـهروردي لـــه ارادتمندانو څخه و چې د سهرورديه طريقې له عالي مقاماتو څخه و.<br>مشهور کتاب يې ګلستان دی چې اته بابه لري او په ډېرو مکاتبو او مدارسو کې د درسي کتـــاب پـــه توګـــه کارېـــده. عبدالقادر خټک د پښتو ژبې مشهور شاعر دغه کتاب په پښتو اړولی دی.<br>بل کتاب يې بوستان نومېږي، دغه کتاب د فارسي ژبې پياوړي ليکوال اوشاعر سعدي په ۶۵۵ هجری کال په نظم ليکلـــی دی. يو ډېروتلی اثر ګڼل کېږي. سعدي دغه کتاب د ابوبکر بن سعد بن زنګي په نوم جوړکړی دی. بوستان لس بابه لري چې لاندې موضوع ګانې پکې شاملې دي: عدل او انصاف، نېکي او ښښنه، مينه، تواضع او مېرانه، د روژنې ادبونه، روغتيا او سلامتيا، توبه او الله جل جلاله ته رجوع کول، مناجات او دا کتاب زرغونې کاکړې د پښتو بوستان ترنامه لاندې پـــه پـــښتو ژباړلی و.<br>سعدي  غزل خپل اوج ته رسولی، اشعاريې ساده او روان په فصاحت او بلاغت کې سارى نه لري، دغه عـــالم پـــه ۶۹۲ هجري په شېراز کې وفات شوی او زيارت يې په همدې ښارکې دی.<br>۵– کاکړ: د پښتـــنو يوه لويه قبيله ده.<br><br>**اضافي معلومات**<br>نرينه او ښځې دواړه د ټولنې د جوړښت دوه غړي دي که له دغو غړو څخه يو کميږي نو د ټـــولنې جوړښـــت اونظم ګډو ډيږي.<br>د اسلام سپېڅلي دين امر کړی چې د مينې ګډ ژوند وکړئ. له کرکې او کينې څخه يې منع کړې دي، هر يوه ته يې بېـــل بېل حقوق ورکړي، د نړۍ پرمختګ د ښځو او نرينه و له بر کته دی وايي: «ښځه په يوه لاس زانګو او په بل لاس جهـــان زنګوي» | |

ښځه هغه موجود دی چې د ژوندانه په ټولو برخو کې له نرینه سره اوږه په اوږه برخه لري، ښځه مور ده او مور د ټولنیزو چارو په ټولو اړخونو کې شریکه ده.

د افغانستان په تاریخ کې د پرله پسې جګړو او ناخوالو له امله ښځو ډېر زیانونه ګاللي دي. له دې ټولو ناخوالو سره سره ښځه نه ده تسلیم شوې، ښځو اتلولي ښودلې او خپل شهامت یې له لاسه نه دی ورکړی. د هېواد دیرغل پر مهال د نرینه و تر څنګ درېدلې، له هغوی سره یې ورځنیو کارونو ته اوږه ورکړې او د دې تر څنګ یې د خپلو اولادونو په روزلو کې هڅه کړې. زموږ د هېواد د نرینه پوهانو، لیکوالو، شاعرانو او ملي شخصیتونو تر څنګ ښځو په ټولو یادو شوو برخو کې یې خپله ورتیا ښودلې اود تاریخ په پاڼو کې یې نومونه په زرینو کرښو لیکل شوي دي.

د دې نومیالیو مېرمنو په ډله کې نازو انا، زرغونه کاکړه، عایشه دراني، بي بي نېکبخته، مېر من الایي، غازي ادې، مېرمن عینو، د مېوند اتله ملاله، شهیده پیغله ناهید او په سلګونو نورې شاملې دي. نن د تاریخ په دغه پړاو کې ښځو خپل غړونه پورته کړي او په ټولنې کې یې خپل دریځ پیاوړی کړی. د هېواد د برخلیک په ټاکلو کې له خپلو نرینه وروڼو سره په ګډه پرېکړه کوي او خپله رایه کاروي. په ښوو نځیو، پوهنتونونو او د هېواد دلوړو زده کړو په مؤسسو کې زده کړه او یا تدریس کوي. لنډه دا چې اوس ښځو ته په ټولنه کې د خپل مسوولیت او دندو د پر مخ وړلو لپاره تر پخوازیاته زمینه برابره شوې ده. په دغه لړ کې د زرغونې کاکړې لنډ ژوند لیک او ادبي برخې ته یو نظر اچول شوی دی

**زرغونه کاکړه**: زرغونه کاکړه د ملا دین محمد لور وه دغې پښتنې مېرمنې د وخت ټول علوم له خپل پلار څخه لوستلي وو. زرغونه کاکړه ډېره پوهه، عالمه، عابده، پرهیزګاره، هېواد پاله، میلمه پاله، او د پښتو ژبې تکړه شاعره وه. دغې مېرمنې د پښتو ژبې لپاره ډېر زیار ایستلی دی د سعدي بوستان کتاب یې په پښتو ژبه ژباړلی او نوم یې (بوستان د پښتو) ورباندې کېښود.

**اخځلیکونه**

د ادبیاتو تاریخ: ارواښاد پوهاند ډاکټر زیورالدین زیور

# نهم لوست

## د تدریس وخت: درې ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | ملي یووالی | |
| د زده کړې (پوهنیزې مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې تر لاسه کړي<br>– ملي یووالې به و پېژني او د هغې په ارزښت به و پوهیږي.<br>– د ملي یووالي د ګټو په اړه به معلومات تر لاسه کړي.<br>– د ملي یووالي په ټینګښدو کې به رغنده برخه واخلي.<br>– متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>– د ملي یووالي د تاریخي ارزښتونو په اړه به وپوهیږي او په دې اړه بـــه خبرې وکړای شي.<br>– دملي یووالي په اړوند به یوه لنډه مقاله ولیکلی شي. | |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه. | |
| د تـــــدریس وســــیلې او مرستندوی توکي | توره تخته، تباشیر، د کلمولیکل شوي چارتونه او ځینی انځوریز چارتونه، قلم او مارکر | |
| د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د څارنې ارزونه او د یادداشت کتابچه | |
| د زده کـــړې او تـــدریس فعالیتونه | ستړي مه شي، حاضري اخېستل، د کورنۍ دندې کتنه، د تېر لوست ارزونه | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | – ښوونکی دې د زده کوونکو د هڅونې لپاره څـــو انګېـــزوي پوښـــتنې وکړي.<br>– تاسو کله د ملي یووالي په اړه فکر کړی دی؟<br>– څوک به دملي یووالي په ګټو خبرې وکړای شي؟<br>– د هېواد خپلواکي، نیکمرغي، رغونه، د څه شي په وسیله منځ ته راځي؟ | ۶ دقیقې |

| ښوونکي فعالیتونه | زده کوونکی فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| ښوونکی دې په لوړ او مناسب غږ متن ولولي.<br>– ښوونکی دې څوتنو زده کوونکو ته دنده ورکړي چې پـــه خپل وار سره د متن یوه یوه بر خه ولولي.<br>– ښوونکی دې زده کوونکي په څو ډلو وویشي او هرې ډلې ته دې سپارښتنه وکړي چې د ملي یووالي په اړه په خپلو کـــې مشوره وکړي او بیا دې یو تن د نورو په استازیتوب خپل نظر یا نتیجه نوروته واوروي.<br>– ښوونکی دې څو تنو زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چـــې د ټولګي مخې ته راشي او د ملي یووالي په اړه د تختې پر مخ | ټول زده کوونکي متن ته ګوري او غوږ نیسي.<br>– ټول زده کوونکي په وار سره د متن په لوســـتلو کـــې ونډه اخلي.<br><br>– زده کوونکي د ښوونکي د لارښوونې سره سم په ډلو کې ګډون کوي، د هرې ډلې استازی د موضوع پـــه اړه نورو ته خبرې کوي.<br>– زده کوونکي له لارښوونې سره سم د ټولګي مخې ته راځي د تختې پرمخ د ملي یووالِي په اړه جملې لیکي | |

| | |
|---|---|
| یوه یوه جمله ولیکي .<br>– ښوونکی دې زده کوونکوته د پښتو لوست په لـومړي او دویم درسي ساعت کې پخپله خوښه او په دریمـه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده وروسپاري. | – زده کوونکي د کورنۍ دندې یادداشت اخلـي او پـه کورونوکې یې بشپړه وي. |

**اضافي معلومات**

**د الفت له نظره په ولسونوکې یووالی**

څومره خیلونه او قامونه چې په افغانستان کې دي دا ټول یوملت دی او په یوه نامه یادېږي چې هغه نوم افغان دی.

تر دې نامه لاندې لکه چې خوږیاني، شینواري، مومند، سلېمان خېل، تره کي، اندړ، څاځي، احمـدزي، بـارکزي،غلجي او درانـي ټول راځي. د غه شان ازبک، ترکمن، هزاره، نورستاني، تاجک او نور په دغه نامه کې شریک دي او ټولو ته افغان ویل کېږي.

د افغانستان ټول خلک په هره ژبه چې خبرې کوي او هر رنګه کالي چې اغوندي، څادر ونه لري او که چپنې، څپلۍ پـه پښو کوي که پڼې

یا موزې، کندهاری وي، که کابلی، ننګرهاری وي، که هراتی، د مزار وي که د میمنې، د جنوبي وي کـه د شـمالي دا ټول یو دي او یو ملت ورته ویل کېږي چې نوم یې افغان دی.

دا نور نومونه چې د افغانستان بېلابېل قومونه او خېلونه یې لري لکه بارکزي، اڅکزي، منګل، ځدراڼ، ایماق او نور داسې مثال لري، لکه د یوه سړي لاس، پښه، خوله، پوزه، سترګه، غوږ، زړه او نور غړي چې ډېر نومونه لري، مګر د سړي نـوم یو دی چې احمد یا محمود ورته وایي، نو څنګه چې یو وجود په دغو ډېرو نومونو باندې نه دوه کېږي او یو سړی سره له دې دوه لاسونه، دوه پښې، دوه سترګې، دوه غوږونه لري یو تن بلل کېږي. یو ملت هم که څومره قامونه پکې وي لکه یو وجود او یو تن باله شي او اصلي نوم یې یو دی.

هماغه شان چې یو وطن څو قسمه هوا لري او یوځای یې بل ځای غوندې نه وي. یوملت هم څوقسمه خلک لـري چـې څوک یوراز او څوک بل راز معلومېږي. هغه څوک چې د ملت په معنا پوهېږي هغه ته دا معلومه ده چې له دغو خېلونـو او قامونو نه پورته یوبل نوم شته چې ټول قامونه پکې شریک دي او ډېره لویه لمن لري.

څنګه چې له سیندو څخه ویالې او له ویالونه لښتي بېلېږي، څنګه چې په یوه ونه کې ښاخونه او په ښاخ کې څـانګې وي، دغسې په یوه ملت کې قامونه په یوه قام کې کندې او تپې شته. د سیندونو، ویالو او لښتیو مثال لري، نو کندې یا تپـې به بېلې وې، مګر قام به یو له بله بېل وي، خو ملت به بېل نه وي.

و ګورئ د پښتنو څومره ډېر قومونه د غلجي یا دراني په نامه یادېږي، خو غلجي او دراني دواړه بیا پښتون او دافغان پـه نامه یادېږي د افغانستان ټول اوسیدونکي باید په دې خبره باندې پوره و پوهېږي چې د یوه ملت خلک ټول یو شان وروڼـه دي او پښتون او فارسي وان، سني او شعیه، غلجی او درانی، هراتی، ننګرهاری، کندهاری، مزاری په دغو بېلو بېلو نومونو له بله نه بېلېږي.

موږ په خپل وطن کې ډېرې کورنۍ وینو چې څه یوه ژبه کوي او څه بله. یو ورور چې په کابل کې اوسـېدلی دی هغـه فارسي وایي او بل ورور چې په ننګرهار کې اوسي هغه پښتو وایي، خو دواړه وروڼه دي او هر یو هغه بل خپل ورور ګڼـي، په یوه کور کې داسې وروڼه او خویندې هم شته چې پلار یې پښتو او مور یې فارسي وایي یایې مور په پښتو او پلار پـه فارسي خبرې کوي.

**اخځلیکونه**

د الفت له نثري کلیاتو څخه ۵۲۳ مخ ( لومړی ټوک)

## لسم لوست

## د تدريس وخت: په اوني کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | دپښتو نثر لنډه تاريخچه | |
| د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي.<br>_ د پښتو نثر د تاريخ په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>_ متن به سم او روان ولوستلای شي او د نويو لغتونو په معنا به وپوهېږي.<br>_ د نظم او نثر په توپيرونو به خبرې وکړای شي او د هغو په معنا او مفهوم به خبرې وکړي.<br>_ د نثر ډولونه به وپېژني او نومونه به يې واخيستلای شي.<br>_ د لوست د متن لنډيز به وويلای شي.<br>_ د متن د پای فعاليتونه به په خپلواک ډول حل کړای شي.<br>_ د متن په لوستلو سره به يې د پښتو ژبې د خبرو کولو مهارت پياوړی شي.<br>_ د پښتو نثر د ارزښت په اړه به څو کرښې مقاله وليکلای شي. | |
| د تدريس لارې | لوستل، ليکل، پوښتنه او ځواب، په يو کسيزه توګه فعاليت او ډله ييز فعاليتونه | |
| د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي | کتاب، کتابچه، قلم، مارکر، تخته او تخته پاک. | |
| د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، تحريري ارزونه، د خبرو کولو ارزونه، د پوښتنې او ځواب ارزونه او د ليکلو ارزونه. | |
| د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام اچول، حاضري اخيستل، د کورنۍ دندې کتنه او د تېر لوست ارزونه. | ۴ دقيقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی دې نوی لوست په لاندې پوښتنو پيل کړي:<br>۱_ څوک ويلای شي چې نثر څه ته وايي؟<br>۲_ ويلای شئ چې نظم او نثر څه توپير سره لري؟<br>_ تاسو د پښتو نثر کوم پخوانی کتاب پېژنئ؟ نوم يې واخلئ. | ۶ دقيقې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
|---|---|---|
| _ ښوونکی دې په وار سره په هر زده کوونکي باندې د متن يو يو پراګراف ولولي، ښوونکی دې د هغو زده کوونکو سره په لوستلو کې مرسته وکړي چې په لوستلو کې کمزوري دي.<br>_ ښوونکی دې زده کوونکي په ډلو ووېشي، د هرې ډلې زده کوونکو ته دې سپارښتنه وکړي چې متن په | _ زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د متن يو يو پراګراف لولي او خپلو تېروتنو ته پاملرنه کوي.<br>_ زده کوونکي په ډلو وېشل کېږي او هره ډله د ښوونکي له لارښوونې سره سم فعاليت ترسره کوي. | |

| | |
|---|---|
| دقت ولولي، يوه ډله دې په متن کې د کتابونو نومونه او بله ډله دې د اشخاصو نومونه په نښه کړي، بيا د هـــرې ډلې استازی دې دتختې مخې ته راشي، هغه په نښه شوې کلمې دې د تختې پر مخ وليکي، | ـ څو زده کوونکي په وار سره د متن په مفهوم خبرې کوي. |
| ـ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه وغواړي چـــې په وار سره د لوست د مفهوم په اړه معلومات ورکړي. | ـ څو زده کوونکي په وار سره د ټولګي پر وړاندې د لوست لنډيز وايي. |
| ـ ښوونکی دې د لوست لنډيز د زده کوونکو له خـــوا واوري او هغوی دې په ښو الفاظو سره وستايي. | ـ زده کوونکي په علاقمندۍ سره د ارزونـــې پوښـــتنو تـــه ځوابونه وايي. |
| ـ ښوونکی دې لوستل شوی لوست پـــه څـــو پوښـــتنو وارزوي او خپل ډاډ دې ترلاسه کړي. | – زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع ګانې په کتابچو کې ليکي او په کورونو کې يې ځواب ليکي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکونه د پښتو په لومړي او دويم درسي ساعتونو کې په خپله خوښه او په دريمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده وروسپاري. | |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

## ملا الله يار

ملا الله يار د کندهار ولايت په شاوخوا کې اوسېده چې د ژوند زمانه يې تر ۱۰۰۰ هــ. کال دمخه ده او يو اثــر لــري چې تحفه الصالح نومېږي.

**ابو محمد هاشم بن زيد سرواني:**

. ابو محمد هاشم سرواني په **۲۲۳**هــ. کال د هلمند په سروان کې نړۍ ته سترګې پرانيستې او په **۲۹۷**هــ. کال پــه بست کې ومړ. نوموړی د پښتو ژبې پخوانی شاعر او پوخ عالم و چې په عربي ژبه کې يې لوی لاس درلود. د ده کتــاب چې د سالووړمه نومېږي د پښتو ژبې لومړی نثري کتاب دی.

**سليمان ماکو**

د پښتو ژبې يو پياوړی ليکوال او پوه دی. د بارک خان زوی په قوم سابزی دی چې د کندهار په ارغستان کې اوسېده او د تذکرةالاوليا په نامه ګټور اثر هم لري. دا کتاب په ٦١٢ هجري قمري کال ليکل شوی دی.

**شيخ احمد**

شيخ احمد لودي د سعيد زوی د پښتو ژبې پياوړی او تکړه تاريخ ليکونکی د ی. نوموړی په ٦٨٦هــ. کال کې د اعلام الوذعي في تاريخ اللودي په نامه يو کتاب ليکلی و چې د ملتان د لودي پاچاهانو حالات او شعرونه پکې راغلي دي.

**شيخ ملي**

شيخ ملي د پيرکي زوی په قام اکازی مندړ و. د پښتو ژبې يو مشر لارښوونکی او تکړه ليکوال و چې غوره کتاب يـــې د شيخ ملي دفتر په نامه يادېږي.

**شيخ کټه**

د پښتو ژبې پياوړی تاريخ ليکونکی او پوه ليکوال و، پلار يې شيخ يوسف او نيکه يې شيخ متي نومېده چې په کلات بابــا مشهور و او د پښتو ژبې نامتو صوفي شاعر و. د نوموړي ټوله کورنۍ د پوهې او ادب مينه واله وه او د ژوند زمانه يـــې د پټې خزانې له مخې ۸۵۰هــ. کال شاوخوا اټکل شوې او غوره کتاب يې د لرغوني پښتانه په نامه يادېږي.

**خوشحال خان بابا**

د توري او قلم څښتن خوشحال خان بابا د شهبازخان زوی په قوم خټک دی. خوشحال خان بابا په ۱۰۲۲هـ. کال کې زېږېدلی او په ۱۱۰۰هـ. کال کې له دې تل پاتې نړۍ څخه سترګې پټې کړي. څرنګه چې بابا د شعر په نړۍ کې د لوی نامه څښتن دی. همدارنګه د نثر په ډګر کې هم یو بې ساری او تکړه پهلوان دی چې د اثارو شمېره یې له ۲۵۰ څخه زیات ښودل شوی دی چې یوازې کلیات یې (۴۰۰۰۰) بیتونه لري.

**دستارنامه**

دستارنامه د ستر خوشحال خان بابا هغه اثر دی چې د مغلو په بند کې یې په داسې حال کې لیکلي چې د کتابونو او اخځلیکونو ورسره هېڅ څرک نه لیدل کېده او نه ورسره وو، د نوموړي کتاب په سر کې د پټکي یا دستار د وړتیا په اړه یوه سریزه لري، ورپسې د هنرونو او خصلتونو په اړه څلور بابونه دي او د کتاب په پای کې یوه پایله هم شته. په دې کتاب کې شل هنرونه او شل خصلتونه هم شتون لري چې د لوست د پنځوالي له امله یې له بېلګو څخه تېرېږو.

**عبدالقادر خان (خټک)**

عبدالقادر خان خټک د خوشحال خان بابا پیاوړی او نومیالی زوی دی. په شعر او نثر کې د پوره نوم څښتن دی. نوموړي په پښتو ژبه او ادب کې ډېر کتابونه لیکلي او ژباړلي او له خپل پلار څخه وروسته په دې ډګر کې ډېر غښتلی دی چې د بېلګې په توګه یې د څو اثارو نومونه اخلو.

۱_ څلوېښت حدیثه.

۲_ د شعرونو دېوان.

۳_ ګلدسته چې په نثر کې تر ټولو غوره اثر دی.

**میا حسیب ګل**

د پښتو ژبې ښه لیکوال او تکړه شاعر دی نوموړي په پښتو ژبه کې ډېر کتابونه لیکلي او ژباړلي دي چې ځینې یې په لاندې ډول دي:

۱_ د اصحاب کهف کیسه.

۲_ بیاض چې ډېر ګټور کتاب دی.

۳_ مرات العروس، نوموړی اثر ناول دی.

میا حسیب ګل په ۱۳۵۰هـ.ق. کال له دې تل پاتې نړۍ څخه د تل لپاره سترګې پټې کړې.

**میر احمد شاه رضواني**

د پښتو ژبې تکړه لیکوال دی. پلار یې قاضي میر صاحب او غور نیکه یې میر عبدالله نومېږي. نوموړی په ۱۲۷۹هـ. کال کې زېږېدلی او په ۱۳۵۳هـ. کال کې ومړ نوموړي ډېر کتابونه لیکلي چې د بېلګې په توګه یې دلته د یو څو نومونو یادونه کوو.

۱_ شکرستان افغاني

۲_ بهارستان افغاني

۳_ وافیه چې د پښتو ژبې پښویه (ګرامر) دی

**منشي احمد جان**

د پښتو ژبې نومیالی ، تکړه لیکوال او د انګلیسي ژبې پیاوړی استاد و. منشي احمد جان په ۱۳۳۰هـ. کال د ۶۹ کلو په عمر ومړ. مهم اثار یې په لاندې ډول دي:

۱_ د افغا نستان تاریخ
۲_ هغه دغه
۳_ د قصه خوانی ګپ

**اضافي معلومات**

**د نثر لغوي او اصطلاحي پېژندنه**

نثر د عربو په لغت کې پاشلو، شیندلو او تیتولو ته وایي او په اصطلاح کې هغه وینا یا لیکنه ده چې د وزن او قافیې له بند او قید څخه خالي وي، خو د اوسنیو ادبپوهانو په اصطلاح نثر یو ادبي ډول دی چې د وزن او قافیې له قید څخه خلاص وي نو د هر ډول افکارو د افادې او بشري پوهې، دیني، فلسفي، ښوونیزو، روزنیزو او ټولنیزو مسایلو د څرګندولو ښه مناسبه وسیله ده. په نثر کې د وزن او قافیې شرط نشته، مګر په نظم کې د وزن او قافیې قید یو بنسټیز شرط ګڼل کېږي او بې له دغو د نظم مانۍ نه جوړېږي. دا ښکاره ده چې نظم او نثر دواړه دهرې ژبې د ادب دوه مهم رکنونه بلل کېږي او دواړه د پوهولو راپوهولو او مطلب څرګندولو اصلي لارې دي. دغه هریو په خپل خپل ځای کې پوره ارزښت لري مګر د ژبې د ادبي پراختیا او نورو اړتیاوو د پوره کولو لپاره نثر زیات غوره دی. په نثر کې د یو مطلب بیان ټول اسان او په نظم کې ګران دي نثر د انسان د فکر او خیال د څرګندولو یوه اسانه او سمه لاره ده. په نثر کې هر ډول موضوع په ازاد ډول بیانېږي او هر څوک ورڅخه په هر وخت کې کار اخیستلی شي. سربېره پردې له نظم څخه د نثر اړتیا هم زیاته ده. له دې کبله د ژبې پوهان نثر اړین او نظم ذوقي شی بولي او وایي چې د خبرو اترو نثر په هره ژبه کې له نظم څخه مخکې میدان ته راوځي، ولې چې لیک او تحریر په نړۍ کې ډېر وروسته پیدا شوی دی او خبرې اترې ډېرې پخوانۍ او لرغونې دي.

د پښتو ادبیاتو په نثري تاریخي بهیر کې دا خبره په یقین سره کولای شو چې پښتو ژبې له ډېر پخوا څخه پاخه نثر لیکونکي او پوه لیکوال درلودل، مګر له بده مرغه چې د ډېرو کسانو حالات، نثري بېلګې او نمونه یې موږ ته نه دي معلوم او زیات یې ورک او بې پتې دي. بیا هم چې څومره یې څرګند شوي دي غواړو په لاندې کرښو کې پرې رڼا واچوو.موږ د شته معلوماتو له مخې د پښتو د نثر تاریخ د دریمې هجري پېړۍ له وروستۍ برخې څخه شروع کوو. ولې چې په دغه پېړۍ کې د پښتو ژبې د یو منثور کتاب نوم موږ ته رارسېدلی دی. که څه هم د نثر بېلګه یې په لاس کې نشته، خو د پښتو نثر لومړی تاریخ ورته ویلی شو. دا دی اوس موږ داوسنیو معلوماتو پر بنسټ د دې دورې د نثر لیکونکو د نثر د کتابونو په اړه لاس پورې کوو.

د پټې خزانې په حواله په دې لړکې لومړنی معلوم نثري اثر دسالو وږمه نومېږي چې ابو محمد هاشم بن زید السرواني لیکلی دی. نوموړی په ۲۲۳هـ. کال د هلمند په سروان کې زېږیدلی او په ۲۹۷هـ. کال په بست کې مړشوی دی.

له ابو محمد هاشم بن زید السرواني څخه وروسته بل معلوم لیکوال سلیمان ماکو دی چې په ٦۱۲ هـ. کال کې یې د تذکرة الاولیاء په نوم کتاب لیکلی. په دغه کتاب کې سلیمان ماکو د خپلې زمانې د پښتنو د ولیانو، بزرګانو، ادیبانو احوال وینا او اشعار راغونډ کړي، خو له بدمرغه دا کتاب په پوره توګه نه دی ترلاسه شوی او یوازې یې د سر څو پاڼې موږ په لاس کې لرو. همدارنګه په دغه دوره کې موږ نور ښه ، ښه نثر لیکونکي هم لرو، خو د موضوع د پنډوالي له کبله یې یوازې نومونه اخیستل غوره بولو.

لکه:د شیخ احمد اعلام الوذعي في تاریخ اللودي د شیخ ملي دفتر، د شیخ کټه لرغوني پښتانه، د ملا الله یار تحفة الصالح د یادونې وړ دي چې د اوومې، اتمې او نهمې هجري پېړۍ په شاوخوا کې لیکل شوي. له لسمې هجري پېړۍ څخه را وروسته بیا موږ د پښتو نثر ډېر ښکلي کتابونه لرو لکه د بایزید روښان مشهور اثر خیرالبیان چې په څلورو ژبو

پښتو، دري، عربي او اردو ژبو لیکل شوی. همدارنګه دآ خوند درویزه مخزن الاسلام نوم یادولی شــو چــې دا دواړه کتابونه په پښتو مسجع نثر کښل شوي او دیني موضوعات په کې راغلي دي. پدې دوره کې د بایزید روښان او اخونــد درویزه پیروانو هم زیات کتابونه لیکلي، خو دلته موږ د دې دوو کتابونو نومونه راوړل کافي بولو.
په یوولسمه هجري پېړۍ کې خوشحال خان بابا او د هغه کورنۍ په نثر کې زیات کتابونه لیکلي او ژباړلي ،خوشحال بابا څنګه چې د شعرونو په نړۍ کې د لوی نوم او شهرت څښتن دی، دغسې د نثر په نړۍ کې هم یو تکړه پهلــوان ګڼــل کېږي.
په یوولسمه پېړۍ کې چې د پښتو نثر په باغ و بڼ د قافیه وال نثر کومه څپه راغلې وه او پښتو نثر یې لــه روانــۍ او ساده ګۍ څخه ایستلی و د خوشحال بابا په وخت کې هغه باغ و بڼ بیا تازګي وموندله. د پښتو نثر څخــه د قــافیې او سجعې تکلف لرې شو. د دې کار لومړی بیرغ د خوشحال خان خټک په لاس پورته شو او دغسې د نثر په ډګر کــې د یو لارښوونکي او بنسټګر په نامه یادېږي، د خوشحال بابا په نثري کتابونو کې د ستار نامه، پښتو هدایه او د خوشحال بیا ض زیات شهرت لري. د عبدالقادر خان خټک ګلدسته د افضل خان خټک تاریخ مرصع او عیار دانش او نورو نومونه د یادونې وړ دي. دا کتابونه په ساده او روانه پښتو ژبه لیکل شوي، همدارنګه ورروسته د هوتکو د واکمنۍ په لــړۍ کــې پښتو نثري لیکنو ډېر زیات پرمختګ کړی دی. لکه: د محمد هوتک ((پټه خزانه)) او د ملا نور محمــد غلځــي نــافع المسلمین. د دې دورې د نثر مشهور او وتلي کتابونه دي. د احمد شاه بابا امپراتورۍ او واکمنۍ پر مهال هم پښتو نثــر زیاته وده وکړه او پراختیا یې موندلې، لکه د پیر محمد کاکړ معرفت الافغاني او د خان علوم د احمد شاه بابا د اشــعارو پښتو شرح په همدغه دوره کې لیکل شوي کتابونه دي.
د دیارلسمې ه پېړۍ په وروستیو کې پښتو نثر د ښه والي او پراختیا په لور ډېر چټک ګامونه پورته کړي. پــه دې دوره کې هم په لفظ او هم په معنا کې پوره بدلون او توپیر راغلی دی. د نوې زمانې، نوي فکرونه او خیالونه، بدیعي نثرونه او هر ډول موضوعات په دې دوره کې د نثر په قالب کې لویدلي دي او د پښتو نثر نړۍ یې رنګینه کړې ده.
ددې دورې لیکوالو په نثر کې د ساده لیکنې لاره خپله کړې ده او د پخواني متکلف، مسجع نثر لیکلو په خلاف عام او د ولــس محاورې ته نژدې کلیوالي او ولسي اصطلاحات، محاورې او متلونه یې هم په خپلو نثري لیکنو کې کارولي دي چې خپل نثــري اثاريې د خلکو د پوهونې لپاره د هغوی په ژبه لیکلي دي. په د ې ډول نثري اثارو کې د بېلګې په توګه د منشي احمد جان هغه دغه، دقصه خوانۍ ګپ، د میر احمد شاه رضواني شکرستان افغاني او بهارستان افغاني او همدارنګه د میا حسیب ګل کاکا خپــل ژباړلی ناول نقش نګین او د میا یوسف ژباړلی ناول توبةالنصوح نومونه اخیستلی شو.
دغه نثرونه په ساده ګۍ او روانۍ سربېره ادبي او هنري ارزښتونه هم لري او د نوو هنري نثرونو څرکونــه پــه کــې ترسترګو کېږي ورروسته بیا د پښتو نثر هر اړخیزه وده او پراختیا موندلې ده. د ساده او ژورنالیستکي نثرونــو ترڅنــګ نوي هنري ادبي ډولونه او ژانرونه هم په پښتو ژبې او ادب کې دود شوي دي. ترننه پورې د پښتو نثر دودې او پرمختیا یون په ډېرې چټکۍ او تېزۍ سره روان دی.

**اخځلیکونه**


۱- رښتین، صدیق الله، د پښتو نثر هنداره
۲- رضا، محمد افضل، د پښتو نثر تاریخ
۳- هاشمي، سید محی الدین، ادب پوهنه، ۱۳۸۱ ه لمریز کال
۴- حبیبي، عبدالحی د پښتو ادبیاتو تاریخ
۵- پسرلی محمد صدیق روهي، د پښتو ادبیاتو تاریخ

## يوولسم لوست

## د تدريس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | | وخت |
|---|---|---|---|
| د لوست موضوع | لفظي صنعتونه | | |
| د زده کړې (پـوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي.<br>ــ د بديع علم به وپېژني.<br>ــ د لفظي صنعتونو ډولونه به وپيژني.<br>ــ د لفظي صنعتونو ډولونو په اړه به خبرې وکړای شي.<br>ــ د متن د بيتونو په لوستلو سره به په دې وپوهېږي چې کوم صنعتونه په کـې کارول شوي.<br>ــ متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>ــ په نورو شعرونو کې به د لفظي صنعتونو ډولونه وپېژني او په نښه بـه يـې کړای شي.<br>ــ د متن لنډيزبه په خپله وويلی شي. | | |
| د تدريس لارې | لوستل، ليکل، خبرې کول، پوښتنې او ځوابونه | | |
| د تـدريس وسـيلې او مرستندوی توکي | د لفظي صنعتونو د نومونو ليکل شوی چارټ، درسي کتابونه، قلـم، مـارکر، تخته، تخته پاک | | |
| د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، تحريري ارزونه، د خبرو کولو ارزونه، د پوښتنې او ځواب پـر وسيله ارزونه او د ليکلو ارزونه. | | |
| د زده کړې او تـدريس فعاليتونه | سلام اچول، روغبړ کول، حاضري اخيستل، د کورنۍ دندې کتنـه او د تېـر لوست ارزونه. | | ۴ دقيقې |
| د انگېزې رامنځته کول | ښوونکی دې د لوست په اړه لاندې پوښتنې او يا دې ته ورته نورې پوښتنې له زده کوونکو څخه وپوښتي او ځوابونو ته دې غوږ ونيسي.<br>۱ــ لفظي صنعتونه څه ته وايي؟<br>۲ــ ستاسو په اند کوم علم له لفظي صنعتونو څخه بحث کوي؟<br>۳ــ آيا د څو لفظي صنعتونو نومونه اخيستلای شئ؟ | | ۶ دقيقې |
| د ښوونکي فعاليتونه | | د زده کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې متن په پټه خوله ولولي اوخپلې تېروتنې دې په گوته کړي.<br><br>ــ ښوونکی دې متن په لوړ او مناسب غږ ولـولي او د لفظـي ښايستونو په اړه دې اړينې څرگندونې وکړي. | | ــ زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم متن په پټه خوله لولي او د ستونزمنو برخو په اړه په خپـل وار سره پوښتنې کوي.<br>ــ زده کوونکي متن ته په غور گوري او غـوږ ورتـه نيسي او د متن په معنا او مفهوم ځانونه پوهوي. | |

| | |
|---|---|
| _ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه غوښتنه وکړي چې د ټولګي پر وړاندې د متن یوه یوه برخه ولولي، ښوونکی دې د اړتیا پر مهال مرسته ورسره وکړي.<br>_ ښوونکی دې زده کوونکي په دوو ډلو وویشي، یوه ډله دې له متن څخه یو بیت پر تختې ولیکي او بله ډله دې ادبي ښایستونه پکې وښيي او اړین توضیحات دې ورکړي.<br><br>_ ښوونکی دې د لاندې پوښتنو په واسطه د اړوند لوست ارزونه وکړي او د نیمګړتیا په صورت کې دې خپله ښوونکی اړینه مرسته ورسره وکړي.<br>۱_ ادبي فنون څه ته وايي؟<br>۲_ د بدیع علم له کومو ادبي ښایستونو څخه بحث کوي؟<br>۳_ لفظي ښایستونه تعریف کړئ؟<br>۴_ د څو وتلو (مشهورو) لفظي ښایستونو نومونه واخلئ.<br>_ ښوونکی دې د متن لنډیز د زده کوونکو له خوا واوري او وړ زده کوونکي دې په ښو الفاظو، لکه: افرین، شاباس، ډېر ښه وستايي.<br>_ ښوونکی دې د پښتو د لوست په لومړي او دویم درسي ساعت کې په خپله خوښه زده کوونکوته کورنۍ دنده وسپاري او په دریمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده وروسپاري او په بله ورځ دې وګوري. | _ زده کوونکي د ښوونکي له غوښتنې سره سم د ټولګي پر وړاندې د متن یوه یوه برخه لولي او د اړتیا پر مهال له ښوونکي څخه مرسته غواړي.<br>_ زده کوونکي په دوو ډلو وېشل کېږي، یوه ډله له متن څخه یو بیت پر تختې لیکي او بله ډله ادبي ښایستونه پکې ښيي او اړین توضیحات ورکوي.<br><br>– زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته په وارسره اړین ځوابونه وايي.<br><br>_ زده کوونکي د ښوونکي په غوښتنه د لوست لنډیز وايي او خپله وړتیا څرګندوي.<br><br>_ زده کوونکي د کورنۍ دندې په توګه سپارل شوی کار په کتابچو کې سرته رسوي او په کورنوکې یې بشپړوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

اشتقاق: د یوې ژبې د ګرامري قوانینو سره سم د یوې ريښې څخه د جوړښو کلمو څرګندونه، جوړونه او را ایستنه.

ذو: یوعربي مختاړی دی چې د مرکبو کلمو په سر کې راځي لکه: ذوالجلا ل. ذو د صاحب او خاوند په معناده.

عباس جمع یې عباسیان دي، عباس: په عربي ژبه کې د زمري په معنا دی، د محمدﷺ د تره نوم او د عباسي خلیفه ګانو مشر نیکه دی. دوی تور بیرغ د خپل شعار په توګه ځان ته غوره کړی و او د بغداد ښار یې مرکز ټاکلی و.

د عباسیانو دولت د (۷۵۰م.) څخه تر (۱۲۵۸م.) پورې دوام وکړ.

**اضافي معلومات**

**بدیع**

دا علم په دریمه هجري پېړۍ کې معتزباالله د دیارلسم عباسي خلیفه زوی ابوالعباس عبدالله راوایست، څنګه چې په عربي کې له ځانه د نوي شي رایستلو ته بدیع یا بداعت وايي، نو ځکه یې په دغه علم د بدیع نوی علم نوم کېښود.

عبدالله بن معتز چې ۲۹۶هـ. کې مړ شوی دی نوموړي تر ټولو دمخه د بدیع د علم په اړه د البدیع نومي کتاب تألیف

کړې دی. په دې کتاب کې يې د بديع (۱۷) فنونه بيان کړي دي.
عبدالله څخه وروسته د ده معاصر قدامه بن جعفر چې په (۳۱۰) هـ. کال کې مړ شوی دی. د نقد قدامه په نوم يو کتاب وليکه چې د عبدالله (۱۷) فنونو ته يې ديارلس نور فنون هم ورزيات کړل. د عباسي او قدامه څخه وروسته ابوهلال عسکري چې په ۳۹۵هـ. کال کې مړ دی ميدان ته په خپل نوبت راودانگل او خپل مشهور کتاب العنا عينين يې په نظم او نثر کې تألیف کړ او د البديع (۳۰) فنونه يې په کې راټول کړل. همدارنگه ابوهلال عسکري په خپل دې کتاب کې د علوم البلاغت نور قواعد، لکه (فصاحت، بلاغت، اعجاز) او داسې نور بيان کړل. د ابوهلال عسکر ي دغه کتاب لومړی کتاب دی چې د علوم البلاغت درې واړو قسمونو (بديع، بيان او معاني ته اشاره پکې شوې ده.
د بديع د علم تعريف: په دې علم سره د وينا غير واجب ښکلا او د تحسين نښې او قسمونه پېژندل کېږي.
يا په بل عبارت: بديع هغه پوهه ده چې د کلام د ښايست او په نوي طرز د وينا طريقې او لارې وربانديې معلومېږي.
دغه ښايستونه په دوه ډوله دي:

۱ـ معنوي صنايع

۲ـ لفظي صنايع

که دغو صنعتونو په معنا پورې اړه درلوده، معنوي صنعتونه او که په لفظ پورې يې اړه لرله لفظي صنايع بلل کېږي. دغه ښايستونه هم په نثري مثالونو او هم په شعري مثالونو کې کارول کېږي، خو دا چې د شعر ښايست ډېر دی، نو ځکه شعري مثالونه ډېر لري.

۲ـ ذوالقافتين: په شعر کې هغه لفظي ښکلا ته ويل کېږي چې د هر يوه بيت په پای کې دوه قافيې خوا په خوا راوړل شي.

که يم ډېر د حوادثو په کشال شلی          خو ورځم که مې رهبر شه باکمال ملی

۳ـ تجنيس: کله چې داسې لفظونه په شعر کې راوړل شي چې په شکل او وزن کې يې زياتره حروف سره يو شان وي، مگر په هر بيت يا مسره کې بېلا بېله معنا ځنې واخيستل شي، تجنيس ورته ويل کېږي.

بيا چې دم د محبت راباندې پو شو          هم هغه دم مې له لاسواو پښو دم وخوت

په لومړۍ مسره کې دم د افسون په معنا او په دويمه مسره کې لومړی دم د وخت او دويم دم د نفس په معنا راوړل شوی دی.
تجنيس په اووه ډوله دی.
۱ـ تام تجنيس: هغه تجنيس ته ويل کېږي چې په شعر کې داسې لفظونه راوړل شي چې په ليک، لوست، شکل، وزن او حروفو کې سره يو شان وي، خو معنا يې سره بدله وي او که چېرته دواړه هم نوعه وي، يعنې اسم يا فعل وي داسې تجنيس ته تام تجنيس يا مماثل تجنيس ويل کېږي.

چې چيچلی دې د عشق بې دمه مار يم          خود به دم راڅخه وکاږي يو دم

((حميد بابا))

په پورته بيت کې درې ځايه د ((دم)) کلمه راغلې ده، لومړی د ((اودې)) په معنا، دويم د ((ساه)) په معنا او دريم د ساعت يا وخت په معنا ده. که چېرته د الفاظو ډول بېل وي يو اسم وي او بل فعل. تجنيس تام مستوفي ورته وايي.

۲ــ مرکب تجنیس:
دا د تجنیس هغه ډول دی چې دوه لفظونه په یوه شکل کې راوړل شي چې په حروفو او ترکیب کې سره برابر وي، مګـــر یو لفظ یې مفرد او بل یې مرکب وي.
لکه عبدالرحمٰن بابا چې وایي:
لکه کاندي په کوترو نظر باز داسې زه یم د دلبرو نظر باز
په لومړۍ مسره کې ((نظرباز)) مرکب دی له نظر او باز څخه او په دویمه مسره کې د کتونکي په معنا راغلـــی دی چـــې مفرده کلمه ده.

۳ــ ناقص تجنیس: دا د تجنیس هغه ډول دی چې متجانسې کلمې په شکل کې سره یو شان وي، خو حرکات یـــې ســـره توپیر ولري، لکه:
ستا له غمه مې په مخ باندې ولې دي لږ مې وپوښته له حاله چې ولې دي
((عبدالرحمٰن بابا))
په لومړۍ مسره کې له ((ولې)) څخه مطلب ویالې دي او په دویمه مسره کې د ((څنګه)) پوښتنې کلمې په معنا راغلی ده.

۴ــ مطرف تجنیس: هغه تجنیس ته ویل کېږي چې دوه لفظونه سره هم شکله، هم وزنه او د حروفو په شمېر کـــې ســـره برابر وي، مګر یو حرف یې بدل وي، لکه:
ما وی زه به نه کوم په خوبانو باندې مینه مینه د خوبانو وچوي د صورت وینه
((عبدالرحمٰن بابا))
په پورته بیت کې مینه او وینه د حروفو په شمېر کې سره برابر دي، مګر یو حرف په کې بدل دی.

۵ــ مکرر تجنیس: هغه تجنیس ته ویل کېږي چې شاعر د شعر په اخر کې دوه الفاظه مکرر راوړي وي، چې په ظـــاهر د لومړي لفظ تکرار ښکاري، مګر په حقیقت کې دا بل لفظ وي چې د لومړي لفظ په سر کې یو یا څو توري زیات راشـــي، لکه:
واعظان دې وعظ که په ممبر بر د ګناه په سیند تر ما دي بتر تر
((کامګارخان))
کله کله داسې هم وشي چې د دویم لفظ څخه ځانګړې معنا مطلب نه وي، مګر د شعر د صحت لپاره لفظونـــه تکـــراري شي.

۵ــ معما: په شعر کې د یوه اسم، یوې نېټې یا کوم څیز بیانول پټ او د رمز په توګه وشي، معما ورته وایي. په پښتو ژبـــه کې د معما ویلو تر ټولو لوی استاد یونس خیبری دی چې د عبدالرحمٰن بابا لاروی و.
لکه:
ډک خُم چې سر چپه کړې یو څاڅکی ورنه توی شي
مدهوش نه چې هوش لرې کړې نامه زما د یار ده

يو ځاځکی يو ټکی مطلب دی چې دا ټکی ورڅخه لرې شي، نو (مح) پاتې کېږي او له مدهوش څخه چې ((هوش)) لــرې شي ((مد)) پاتې کېږي او کله چې (مح) له مد سره يو ځای شي، نو (محمدﷺ) ورڅخه جوړېږي چــې د شــاعر مطلــب ورڅخه حضرت محمدﷺ دی.

٦ـ اقتباس: کله چې شاعر په خپل کلام کې د آيت شريف، حديث شريف او يا د کومې مقولې څه برخه په داسې شــکل نقل کړي چې د شاعر له کلام سره يې د بلې ژبې په حيث توپير ونه شي او که چېرې لږ غوندې توپير په کې ښکاره هــم شي، مګر په وزن کې يې څه توپير رانه شي اقتباس ورته ويل کېږي.

عبدالرحمٰن بابا وايي:

هر بخيل د خدای جل جلاله دښمن دی ولوکان زاهدا

**اخځليکونه:**

١– ارشاد او رنګزيب، بديع او پښتو شعر

٢– ادبي فنون ( بديع او بيان) مؤلف پوهنمل محمد اقا شيرزاده کال ١٣٠۴ ل کال

# دولسم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | معنوي صنعتونه | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>_ معنوي صنعتونه به وپېژني.<br>_ د معنوي صنعتونو ډولونو به په شعرونوکې پیداکړی شي.<br>_ متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>_ د معنوي صنعتونو د ډولونو په اړه به خبرې وکړای شي.<br>_ د متن د بیتونو په لوستلو سره به په دې وپوهېږي چې کوم صنعت په کې کارول شوی؟<br>_ د متن لنډیز به په خپله ژبه وویلای شي.<br>_ د متن د پای فعالیتونه به په خپلواکه توګه ترسره کړای شي. | |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، خبرې کول، پوښتنې او ځوابونه | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي: | د امکان په صورت کې درسي کتاب، کتابچه، قلم، مارکر، تخته او تخته پاک. | |
| د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د خبرو کولو ارزونه، د پوښتنې او ځواب په وسیله ارزونه. | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام اچول، روغبړ کول، حاضري اخیستل، د کورنۍ دندې کتنه او د تېر لوست ارزونه. | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی دې نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړي او هم کولای شي چې دې ته ورته نورې پوښتنې له زده کوونکو څخه وپوښتي:<br>۱_ تاسې دمعنوي صنعتونو نوم اورېدلی؟<br>۲_ د بدیع له کلمې سره بلدتیالرئ؟<br>۳_ د څو معنوي صنعتونو نومونه اخیستلای شئ؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| _ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې متن په چوپه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې دې په نښه کړي.<br>_ ښوونکی دې یوه تن زده کوونکي ته لارښوونه وکړي چې متن په لوړ غږ ولولي او نور زده کوونکي دې ورته غوږ ونیسي او ښوونکی دې څارنه وکړي.<br><br>_ ښوونکی دې زده کوونکي په دوو ډلو ووېشي، د یوې ډلې | _ زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم متن په چوپه خوله لولي او ستونزمنې کلمې یې په نښه کوي.<br>_ یو تن زده کوونکی د ښوونکي له لارښوونې سره سم متن په لوړ غږ لولي او نور ورته غوږ نیسي. | |

یو زده کوونکی دې له متن څخه یو بیت پر تختې ولیکـــي او د بلې ډلې زده کوونکی دې په هغه کې راغلی ادبي صنعت په نښه کړي او لازمې څرګندونې دې ورکړي، دا لړۍ دې پـــه دواړو ډلو پلې شي.

ـ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه غوښتنه وکړي چې د ټولګي پر وړاندې د متن یوه یوه برخه ولولي، ښـــوونکی دې د اړتیا پر مهال مرسته ورسره وکړي.

ـ ښوونکې دې په لاندې پوښتنو سره د نوي لوست د زده کړې ارزونه وکړي

۱ـ ادبي فنون څه ته وايي؟

۲ـ ادبي فنون کومې څانګې لري؟

۳ـ بدیع په لغت او اصطلاح کې څه ته وايي؟

۴ـ معنوي صنعتونه تعریف کړئ.

– ښوونکی دې د پښتو لوست په لومړي او دويم درسي ساعت کې په خپله خوښه زده کوونکوته کورنۍ دنده و سپاري او پـــه دریمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده وروسپاري او پـــه بله ورځ دې وګوري.

ـ زده کوونکي په دوو ډلو وېشل کېږي، د یوې ډلـــې یو زده کوونکی د متن څخه یو بیت پر تختې لیکي او د بلې ډلې زده کوونکی په هغه کې راغلی ادبي صنعت په نښه کوي او خبرې ورباندې کوي.

ـ څو تنه زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې ســـره سم د ټولګي پر وړاندې د متن یوه یوه برخه لولي او د اړتیا پر مهال له ښوونکي څخه مرسته غواړي.

ـ زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته اړین ځوابونـــه وايي او ښوونکی دې وړ زده کوونکي په افرین شاباس او ډېر ښه الفاظو باندې وستايي.

– زده کوونکي د کورنۍ دندې عنوان په خپلو کتابچو کې لیکي او په کورنوکې ورباندې کار کوي.

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

**تألیف:** لیکنه لکه د کتاب یا کوم بل اثر په داسې ډول چې مطلبونه یې له نورو کتابونو څخه را اقتباس شوي وي. په تألیف کې کېدای شي یو کس وي یا له یوه کس څخه زیات وي.

**عباسیان:** مفرد شکل یې عباس دی چې د رسول اللهﷺ د تره نوم او د عباسي خلیفاګانو مشر نیکـــه دی. د عباســـیانو د واکمنۍ مرکز د بغداد ښار و.

**عبدالله:** د الله جل جلاله بنده چې په عربي ژبه کې (عبد) د بنده په معنا دی.

**کنعان:** په عراق کې د یوې تاریخي سیمې نوم دی.

**اضافي معلومات:**

**معنوي ښایستونه (صنایع)**

هغه ښایستونه یا صنایع دي چې د معنا رعایت په کې لازم وي، نه د لفظ. د معنوي صنایعو ډولونه په لاندې ډول دي

(الف) طباق: په یوه کلام کې چې متقابل الفاظ، لکه: رڼا او تیاره، شپه او ورځ، ژړا او خندا، مرګ او ژوند، خوشـــحالي او خفګان، تور او سپین، ښه او بد او داسې نور یو ځای سره راوړل شي، طباق یې بولي. د پـــښتو ادب نومیـــالي شـــاعر عبدالقادر خان په خپل شعر کې د طباق د ښایست مراعات داسې کړی دی

په خندا خندا چې تلمه یې دیدار ته

اوس یې درومم په ژړا ژړا مـــــــزار ته

په پورته بیت کې د خندا او ژړا د کلمو په ذکر کې طباق موجود دی.

د طباق ډولونه: طباق په درې ډوله دی

۱_ اسمي طباق: چې د دوو نومونو یا صفتونو ترمنځ تقابل موجود وي، لکه په دې متل کې:
انسان تر ګل نازک، تر کاڼي کلک دی

۲_ فعلي طباق: که د دوو فعلونو ترمنځ تقابل یا تضاد موجود وي، فعلي طباق یې بولي، لکه:
ټولول، کېښودل د زړو ښځې کاندي _ ورکول، بازل دي خوی خصلت د نرو

په پورته بیت کې ټولول یعنې جمع کول د ورکولو په مقابل کې، کېښودل د بازلو سره او ښځې د نرینه و په مقابل کې د طباق کلمې دي. څرنګه چې ټولول، ورکول، کېښودل بازل فعلونه دي او په یو بیت کې سره متقابل راوړل شوي دي، نو فعلي طباق یې بولو.

۳_ ایجابي او سلبي طباق: که دوه فعلونه یا صفتونه له یوې مادې څخه د مثبت او منفي یا امر او نهې په صورت راوړل شي ایجابي او سلبي طباق یې بولي.

لکه: له مړاوو اوبو ووېرېږه له تېزو اوبو مه وېرېږه، په دې مثال کې ووېرېږه او مه وېرېږه تقابل یا تضاد لري، مګر څرنګه چې دواړه فعلونه له یوې مادې څخه دي، نو ایجابي او سلبي طباق یې بولي.

**لف و نشر**: هغه صنعت ته وايي چې شاعر په خپل شعر کې لومړی څو شیان ذکر کړي او وروسته بیا د هغو تعریف او بیان وکړي، لکه:

په ځان کې دواړه سترګې په جهان کې واړه ښکلي      په ځان او په جهان کې، دا دوه څیزه دي ماکښلي

د لومړي بیت په لومړۍ مسره کې ذکرشوی دی او لف راغلی دی په دویمې مسرې کې په ترتیب سره د هغو بیان شوی دی.

**ایهام یا توریه**: د ایهام لغوي معنا په وهم او ګومان کې اچول دي.

په ادبي اصطلاح کې که یو شاعر دوه یا زیاتې معنا لرونکې کلمې په خپله وینا کې داسې راوړي چې د لوستونکي یا اورېدونکي ذهن غیر مقصودي ظاهري معنا ته لاړ شي، مګر مقصوده معنایې بله وي.

لکه: ستا زما په منځ کې لار د قاصد نشته      د رازونو کیسې اوس واړه برباد شوې

په پورتني بیت کې د برباد د کلمې اصلي معنا خراب او ویجاړ ده، دلته غیر مقصوده ظاهري معنا یې د باد په واسطه مفهوم ادا کول او پټه معنا یې په غاړه یعنې باد یې قاصد شو دلته توریه د برباد په کلمې کې ده.

د ایهام یا توریې ډولونه

۱_ مجرده توریه

۲_ مرشحه توریه؟

**۱_ مجرده توریه**: هغه توریه ده چې د قریبې (ظاهري) معنا سره متناسبې کلمې په وینا کې موجودې وي، لکه سید رسول رسا چې وايي

چې د زړه د اور په سوز مې سمندر کړې      داسې ژوند زه په هر دم جاویدان غواړم

په پورته بیت کې د سمندر قریبه یا نژدې معنا لوی سیند دی، مګر په دې ځای کې د سمندر څخه پورته معنا لوی سیند مطلب نه، بلکې د سمندر د کلمې څخه هغه چینجی مقصد دی چې په اور کې ژوند کوي.

مدعاالمثل: هغه ادبي صنعت دی چې شاعر په یو نیم بیتي کې یو مطلب راوړي او په بل نیم بیتي کې د خپل مطلب د اثبات لپاره یو بهرنی مثال راوړي.

نصیحت په غافلانو اثر نه کا      د سرې اوسپنې خوشې ټکول دي
د خواجه نصیحت ځکه اثر نه کا      په یوه رنځور د بل نه شي علاج

شاعر په راوړل شوو بيتونو کې په لومړيو نيم بيتيو کې خپلې ادعاګانې ذکر کړي او بيا يې د دوی د اثبات لپاره يو متـــل هم راوړی دی چې دغسې صنعت ته مدعا المثل وايي.

ـ **ارسال المثلين:** هغه ادبي صنعت ته ويل کېږي چې شاعر په يوه بيت کې دوه متله راوړي، که چېرې لاندې بيت تـــه ځيـــر شـــو، هر نيم بيتی يې يو متل دی، نو شاعر په يوه بيت کې دوه متله راوړي دي چې دغسې ښايست ته ارساالمثلين وايي.

بې زحمته راحت نشته زما وروره  که راحت غواړې زحمت درلره بويه

ـ **مبالغه:** که يو شاعر د يوه شي ستاينه او غندنه تر خپلې اندازې زيات بيان کړي او د هغه ښه والی او بد والی تصديق او تکذيب ته تيزي ورکړي، مبالغه بلل کېږي.

مبالغه په درې ډوله ده.

تبليغ د مبالغې هغه شکل دی چې مدعا يا د مبالغه شوي ستاينه کېدل يا غندل د عقل او هم د عادت لـــه مخـــې امکـــان ولري. خوشحال بابا وايي.

له خوشحال سره که کېنې يو ځو کاله  دادغره ختېک به واړه شاعران شي

په پورته بيت کې د غره ختېک ټول شاعران کول په هغه صورت کې چې ځو کاله د خوشحال بابا ســـر ناســـته او ولاړه ولري د عقل او عادت له مخې امکان لري، نو د مبالغې دغه شکل ته تبليغ وايي.

۲- اغراق: د مبالغې هغه شکل دی چې مدعا د عقل له مخې امکان ولري خو د عات له مخې غير ممکنه وي، لکه علـــي خان چې وايي.

مياشتې ځان که د آس نعل مېخونه ستوري
چې د نازېه آس سورشي شهسوار زما

په پورته بيت کې شاعر د هلال څخه د آس نعل او د اسمان له ستورو څخه يې ميخونه جوړ کړي چې دا ډول مبالغې تـــه اغراق وايي د مبالغې دغه ډول شاعران او اديبان هغه وخت خوښوي چې يوازې نزاکت او لطافت پکې مو جود وي

۳- غلو: د مبالغې هغه شکل دی چې مدعا دعقل او هم د عادت له مخې غيرممکنه وي، لکه کامګارخان چې وايي:

غم يې هسې ناتوان کړم په وېښته له ځايه لوېږم
زړه مې يوه وړه دانه د غوښت يا د ګدن شوه

دومره کمزوري کېدل چې په ويښه له ځايه ولوېږي، دا د عقل او عادت له مخې ناممکنه ده، دا ډول ښايست ته اغراق ويل کېږي.

**براعت الالستهلال:** په فصل او فصاحت کې تر سيالانو لوړېدلو ته وايي او الستهلال په لغت کې د نوې مياشتې کتل دي. په اصطلاح کې هغه مناسبت ته براعت الالستهلال وايي چې د قصيدې (بوللې) مقالې کتاب په شروع کې د وينا له اصلي غايي او مقصود په پيل کې راوړل شي. د ساري په توګه حميد ماشوخېل د شاه ګدا د کېسې شروع په هـــم داســـې ډول کړې ده.

**اخځليکونه:**

۱- ادبي فنون (بديع او بيان) مؤلف پوهنمل محمد آقاشېرزاد، کابل۱۳۸۴ لمريز کال.
۲- فضليات(دپښتو ادبي اصطلاحات)ختېک فضل مير
۳- پنهان، حاجي فضل محمد، ادبي ارمغان ۱۳۸۱ لمريزکال

# دیارلسم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرحه | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|
| | خیرالبیان | د لوست موضوع |
| | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ خیرالبیان به وپېژني او په اړه به یې نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>ـ د خیرالبیان د لوست په لوستلو سره به د نومورې کتاب په ارزښت وپوهېږي.<br>ـ متن به په سمه توګه ولوستلای او ولیکلای شي.<br>ـ د متن په معنا او مفهوم به پوه شي.<br>ـ د لوست لغتونه به معنا او په جملو کې به یې وکاروي.<br>ـ د لوست لنډیز به په شفاهي توګه وویلای شي.<br>ـ د لوست د پای فعالیتونه به په یوازې توګه ترسره کړای شي. | د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې |
| | لوستل، لیکل، خبرې کول، پوښتنې او ځوابونه، یو کسیز کار او ډله ییز کار | د تدریس لارې |
| | درسي کتابونه، کتابچې، قلم، مارکر، تخته، تخته پاک، د کلمو او لغاتو لیکل شوي چارټونه | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي: |
| | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د څارنې په وسیله ارزونه او د یادداشت کتابچه | د ارزونې لارې |
| ۴ دقیقې | سلام او ستړي مه شي، حاضري اخیستل، دکورنۍ دندې کتنه او د تېر لوست ارزونه | د زده کړې او تدریس فعالیتونه |
| ٦ دقیقې | ښوونکی دې لاندې هڅوونکې پوښتنې له زده کوونکو څخه وپوښتي او هم کولای شي چې دې ته ورته نورې پوښتنې هم له زده کوونکو څخه وپوښتي:<br>۱ـ تاسې د خیرالبیان نوم اورېدلی؟<br>۲ـ بایزید روښان پېژنئ؟ | د انګېزې رامنځته کول |

| ۳۵ دقیقې | د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| | ـ زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم متن په پټه خوله لولي او د ستونزمنو برخو په اړه په خپل وار سره پوښتنې کوي.<br>ـ زده کوونکي د متن لوستلو ته پوره پاملرنه کوي او په معنا او مفهوم یې ځانونه پوهوي. | ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې متن په پټه خوله ولولي اوخپلې تېروتنې دې په ګوته کړي.<br>ـ ښوونکی دې متن په لوړ او مناسب غږ ولولي، ستونزمنې کلمې او مفاهیم دې زده کوونکو ته روښانه او د بایزید روښان د پېژندنې په اړه دې اړینې څرګندونې وکړي. |

| | |
|---|---|
| ـ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه غوښتنه وکړي چې د متن یوه یوه برخه د ټولګیوالو پر وړاندې ولولي، ښوونکی دې د اړتیا پر مهال د سمون لپاره مرسته ورسره وکړي. | ـ زده کوونکي د متن یوه یوه برخه د ټولګیوالو پر وړاندې لولي او د اړتیا پر مهال له ښوونکي څخه مرسته غواړي. |
| – ښوونکی دې متن په لوړ اواز او مناسب غږ ولولي او دهغه په معنا دې خبرې وکړي. | – زده کوونکي دې ښوونکی د متن لوستلو ته غوږ نیسي او په معنا یې ځانونه پوهوي. |
| – ښوونکی دی دووتنو زده کوونکو ته بلنه ورکړي چې د تختې مخې ته راشي یو تن دې د خیر البیان یو پرګراف په پښتو ژبه ووایي او بل دې په دري ژبه تر جمه کړي او د اړتیا پرمهال دې ښوونکی مرسته ورسره وکړي. | – دوه تنه زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د تختې مخې ته راځي او نوموړی فعالیت تر سره کوي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکي په دریو ډلو وویشي او دې ته دې وګومارل شي چې یوه ډله په متن کې پښتو کلمې، بله ډله دې دري کلمې او دریمه ډله دې عربي کلمې په نښه کړي او د هرې ډلې استازی دې په نښه کړې کلمې د تختې پر مخ په بېل بېل ډول ولیکي. | ـ زده کوونکي په دریو ډلو وېشل کېږي، یوه ډله په متن کې پښتو کلمې، بله ډله دري کلمې او دریمه ډله عربي کلمې په نښه کوي او د هرې ډلې استازی په نښه کړې کلمې د تختې پر مخ لیکي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکي په وار سره د تختې مخې ته راوغواړي، په یو تن دې لغتونه معنا او بل دې هغه په مناسبو جملو کې وکاروي او دا لړۍ دې په ټولګي کې ترپایه تعقیب کړي. | ـ زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د تختې مخې ته راځي، یو تن کلمه لیکي او بل یې په مناسبه جمله کې استعمالوي. |
| ـ ښوونکی دې د لاندې پوښتنو په واسطه د لوست ارزونه وکړي.<br>۱ـ خیرالبیان چا لیکلی دی؟<br>۲ـ خیرالبیان څه ډول کتاب دی؟<br>۳ـ په خیرالبیان کې له پښتو پرته په نورو کومو ژبو مطالب راغلي دي؟<br>۴ـ په خیرالبیان کې کوم مسایل راغلي دي؟<br>۵ـ خیرالبیان په کوم ډول نثر لیکل شوی؟<br>٦ـ بایزید روښان څوک و؟ | ـ زده کوونکي د ښوونکي له پوښتنو سره سم ځوابونه وایي او خپله وړتیا ښیي. |
| ـ ښوونکی دې د متن لنډیز د زده کوونکو له خوا واوري. | ـ زده کوونکي د متن لنډیز په خپله ژبه وایي. |
| ـ ښوونکی دې د پښتو د لوست په لومړي او دویم درسي ساعت کې په خپله خوښه او په دریمه ورځ د لوست د پای کورنۍ دنده زده کوونکوته وسپاري او په بله ورځ دې په ټولګي کې اصلاح او وګوري. | ـ زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع په خپلو کتابچو کې لیکي او په کورونو کې بشپړوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

**۱ـ اخوند درویزه:** د یوولسمې هجري پېړۍ وتلی او مشهور لیکوال او په یوې علمي او مذهبي کورنۍ کې لوی شـــوی، پلار یې ګدای نومېده، د ده مشران نیکونه په ننګرهار کې اوسېدل، نو ځانته ننګرهاری وایي، مګر خپله اخون درویزه پـــه یوسفزو کې زېږېدلی او لوی شوی. اخوند درویزه د ۱۰۸ کلو په عمر په ۱۰۴۸هــ. کال مړ او قبر یې د پېښور په هزار خانۍ کې شتون لري.

**کلاسیک:** لرغونی، پخوانی، قدیم، تاریخي؛ هغه څه چې په پخوانیو زمانو پورې اړه لري غوره او منل شوي ته هم وایي.

**تصوف:** صوفي کېدل، د نفس د پاکولو طریقه، د نفساني غوښتنو څخه د ځان ژغورنې، باطني وجود ته پاملرنه .

**مسجع:** هغه نثرته ویل کېږي چې نیمه منظوم او مقفی وي یعنې وزن او اهنګ ولري لکه د خیر البیان متن.

**اضافي معلومات**

بایزید روښان چې په پښتنو کې په پیر روښان، میا روښان او بایزید روښان انصاري نومونو باندې شهرت لري، پـــه قـــوم اورمړ پښتون و چې په ۹۲٦هجري کال د هندوستان په جالندهر کې د قاضي عبدالله کره دې نړۍ ته سترګې غړولي دي. د نسب لړۍ یې پنځمې پېړۍ کې پیر سراج الدین ته او بیا د ده په واسطه په یوویشتم پښت کـــې د حـــضرت محمـــدﷺ اصحابي ابو ایوب انصاريرضي الله عنه ته رسېږي.

بایزید وړوکی و چې پلار یې له هند څخه خپل هېواد کاني ګرام (وزیرستان) ته راســـتون شـــو، دا ماشـــوم لـــه هماغـــه کوچنیتوب څخه ډېر زیرکه و او په خپله ځانګړې مینه د علم، پوهې او فضل څښتن شو. زیات پام یې اســـلامي او دینـــي علومو ته و او د دې په څنګ کې د لېون، څېړنې او د زیات ریاضت مینه یې هم درلوده، د خپلو مشرانو سره یې تجـــارت او سوداګري شروع کړه او هم په دغه لړ کې یې شاوخوا هېوادونه وکتل او د بېلا بېلو مذهبونو او عقیـــدو د خاونـــدانو پوهانو او عالمانو سره یې لیدل کتل وشو، خبرې اترې یې وکړې او په دې توګه یې د معلوماتو او تجربو پانګه درنه شوه، ولې په اخر کې سوداګرۍ (تجارت)خوند ور نه کړ او خپل ټول وخت یې پاک نفسۍ، ذکر او فکر تـــه وبـــښه، تـــر دې پورې چې یو څه وخت وروسته یې د یو پیر مقام ترلاسه کړ. حلقې پرې راماتې شوې، د پیرۍ او مریدۍ سلسله یې شروع شوه، دغه لړۍ ((روښاني)) لړۍ وبلل شوه او دی پیر روښان وبلل شو. له کابل څخه تر پنجاب پـــورې د ده نـــوم لاړ او دې نوي تحریک ډېر زور وموند، ځکه چې د پښتنو زیاتره قبیلو په دې تحریک کې برخه واخیـــسته روښـــانیه عقیـــده او اصول داسې وو چې دهغه وخت ځینو عالمانو د ده د تحریک سخت مخالفت وکړ، په دغو عالمانو کې د اخوند درویـــزه نوم د یادونې وړ دی. اخوند درویزه د ده سره مناظرې او مباحثې وکړې او په ډاګه یې د ده مخالفت اعلان کړ.داوخـــت حکومت د مغلي اکبر پاچا و، او دا ورته څرګنده شوه چې بایزید روښان ګنې پښتنې قبیلې له ځان سره کړې دي، هـــسې نه چې د مغلو پر خلاف راپورته شي، نو د دوی د ځواک او طاقت له منځه وړلو هڅې یې شروع کړې. په ګنـــو ځـــایونو کې د مغلو د پوځونو او روښانیانو ترمنځ نښتې وشوې. په دې نښتو او شخړو کې زیاته مشهوره جګړه د بنیر جګـــړه ده، ولې د پیر روښان تحریک هغه وخت کمزوری شو چې پیربابا او اخوند درویزه یې پرله پسې مخالفت وکړ، تر دې چې پیر روښان ته به یې پیر تاریک وویل، خو له دومره کړاوونو او ستونزو سره چې دی ورسره لاس او ګرېوان و، بیا هم د ژوند تر اخري سلګیو پورې د مغلو پر وړاندې په زغرده او مېړانه وجنګېده چې په پای کې په ۹۸۰هــ. کال کې مړ شو او پـــه پټه پور نومي ځای کې خاورو ته سپارل شوی دی. ارواښاد زیات شمېر اثار لیکلي چې تر ټولو اثارو څخه یـــې غـــوره او مشهور اثر خیرالبیان نومېږي.

**خیرالبیان:**

خیرالبیان د بایزید روښان په ټولو ادبي او علمي اثارو کې ستر حیثیت لري. دا کتاب په څلورو ژبو لیکـــل شـــوی دی، د

کتاب په اخر کې ليکي: ((گوره چې کښلی مې دی خيرالبيان په څلورو ژبو موافق له قرآن پکې دی خيرالبيان، پـه دې توگه ارزاني او دولت لواني دا کتاب د پير روښان دېوان بولي.

ارزاني وايي:

د فقير پښتون ديوان دی

دا ديوان حقاني خوان دی

دی رېخته په څلور ژبو

دی بيان په څو الوان دی

دا کلام د هغه دل دی

چې د عشق پر اور بريان دی

دولت وايي:

په څلور لفظه يې خيرالبيان روغ کا

موافق شو په ايات په حديثونه

د خيرالبيان يوه نسخه د جرمني په ټيو بنگن پوهنتون کې موندل شوې ده، له نېکمرغه دا د خيرالبيان هغه ټوټه ده، کومـه چې په پښتو ژبه ليکل شوې ده. په منځ کې يې د قرآن شريف آياتونه، احاديث، عربي مقولې او د مشرانو خبرې په عربـي ژبه يې ليکلي دي، ترجمه يې په پاړسي ژبه په حاشيه کې شوې ده. په زړه پورې خبره دا ده چې په لومړنيو مخونو کې يـې ځينې جملې د هندي ژبې هم راغلي دي چې د جالندر د شا و خوا د پنجابي له لهجې سره سمون خوري. اسلامي دائـرة المعارف د خيرالبيان په اړه ليکي، چې د دې کتاب څلوښنت څپرکي و. د اخوند درويزه په قول يې ځينې ټوټې په پاړسي، عربي او ځينې په پښتو او هندي ژبو وې. ويلی شو چې د ځنکدن په وخت کې د مريدانو د پوښتنې په ځواب کې بايزيـد دا وويل چې څه ماته څرگند وو هغه مې په خيرالبيان کې ليکلي دي، د خيرالبيان ځينې جملې چې ډېرې بې ترتيبـه، بـې ترکيبه او بې ربطه وې. ولې بيا هم مريدانو خيرالبيان يو ډېر پاک او سپېڅلی کتاب گڼلو او د دې کتاب به يې ډېره ساتنه کوله.

ميجر راورټي هم د خيرالبيان ذکر په خپل پښتو گرامر کې کړی دی، خو نوم يې د خيرالبيان په ځای خوربان ليکلـی دی، د کتاب ځينې جملې يې په دې ډول دي:

۱ــ مرگ به ورشي و سرې ته ناگهان، نشته د سرې په دنيا کې تل تر تله مقام ،گوره د دغې زمانې ادميان، ځينې په کرلې په پووند گلې (شپونتوب او کوچيتوب) چې په ترکښ (تورکښ) باندې، ځينې په نور نور چار مشغول که ادميان.

۲ــ گوره کښلی مې د ی خيرالبيان په څلور ژبې موافق له قرآن، په کې دی. بيان د رښتيا د دروغ و حلال و حــرام او بيان د کړو نکړو دا (امرونهی) د هر مقام په تا دې وي اعلام.

**اخځليکونه**


ــ رښتين، پوهاند صديق الله، د پښتو نثر هنداره.

ــ رضا، محمد افضل، د پښتو د نثر تاريخ.

ــ هېواد مل سرڅېړونکی زلمی، د پښتو ادبياتو لرغونې او منځنۍ دوره.

## خوارلسم لوست

### د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليكونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | عبدالرحمٰن پژواک | |
| د زده کړې (پـوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ عبدالرحمٰن پژواک به وپېژني او د نوموړي د ادبي خدمتونو په هکله به معلومات ترلاسه کړي.<br>ـ د عبدالرحمٰن پژواک چاپ شوي او ناچاپ اثار به وپېژني او نومونه به يې زده کړي.<br>ـ په متن کې د راغلي شعر په معنا او مفهوم به پوه شي.<br>ـ په متن کې به د مفرد او جمع نومونه پيدا او پر تخته به يې وليکلای شي.<br>ـ د عبدالرحمٰن پژواک د ادبي خدمتونو په هکله به خبرې وکړای شي.او د خبرو کولو ځواک به يې پياوړی شي<br>ـ د متن د پای فعاليتونه به په يوازې توګه تر سره کړای شي. | |
| د تدریس لارې | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه او خبرې کول | |
| د تدریس وسيلې او مرستندوی توکي | د امکان له مخې د عبدالرحمٰن پژواک د ځينو چاپ شوو اثار ټولګي ته راوړل ، د مفرد او جمعو نومونو ليکلي کارتونه | |
| د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، د لوستلو ارزونه، د پوښتنې او ځواب په وسيله ارزونه | |
| د زده کړې او تدريس فعاليتونه | سلام ورلاندې کول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل او د کورنۍ دندې کتنه او د تېر لوست څخه لنډه ارزونه | ۴ دقيقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی دې لوست په لاندې پوښتنو پيل کړي او هم کولای شي دې پوښتنو ته ورته نورې پوښتنې له زده کوونکو څخه مطرح کړي.<br>ـ کولای شئ د داسې شخصيتونو نومونه واخلئ، چې په دري او پښتو ژبو يې ادبي آثار ليکلي وي؟<br>ـ کولای شئ د عبدالرحمٰن پژواک په هکله څه ووايئ؟ | ۶ دقيقې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
|---|---|---|
| ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي، چې متن په چوپه خوله له ځان سره ولولي او د ستونزمنو الفاظو سره که مخامخ کېږي، په نښه دې کړي.<br>ـ ښوونکی دې متن په مناسب اواز ولولي او بيا دې په څو زده کوونکو په وار سره د لوست يو يو پراګراف ولولي. ښوونکی دې له هغو زده کوونکو سره په لوستلو کې مرسته وکړي، چې په لوستلو کې کمزورې دي. | ـ زده کوونکي په چوپه خوله د متن ټاکلې برخې لولي او د ستونزمنو کلمو چې په نښه کړي يې دي د هغه معنا له ښوونکي څخه پوښتي.<br>ـ څو زده کوونکي په وار سره د متن يو يو پراګراف لولي او خپلو لفظي تېروتنو ته پاملرنه کوي. | |

| | |
|---|---|
| ـ ښوونکی دې د متن په نښه شوې کلمې د زده کوونکو پــه واسطه د تختې پر مخ ولیکي، څو نورو ته دې وخت ورکــړي چې د کلمو معناوې ووايي او د تختې پر مــخ یــې د کلمــو ترڅنګ ولیکي. ښاغلی ښوونکی دې د نیمګړتیا په صــورت کې ورسره مرسته وکړي. همدا راز له څو نورو زده کوونکــو څخه دې و غواړي چې معنا شوو کلمو ته جملې جــوړې او د تختې پر مخ يې وليکي، پاتې نورو ته دې لارښوونه وکــړي، چې هغه په خپلو کتابچو کې وليکي. | ـ څو زده کوونکي په وار سره په نښه شوې کلمــې د تختې پر مخ ليکي او معناوې يې هم ترڅنګه ليکي، څــو نور زده کوونکي ورته جملې جوړوي او پر تختــې يــې ليکي، پاتې زده کوونکي يې په کتابچو کې ليکي. |
| – که تاسې د پژواک په څېر یو علمي شخصیت شــئ کــوم کارونه به وکړئ؟ | – زده کوونکي خپل ښلا ښل نظرونه وړاندې کوي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښونه وکړي، چې یوه ډلــه دې په خپله خوښه په متن کې مفرد او خاص نومونه په نــښه کړي، بله ډله دې د عبدالرحمٰن پژواک د چاپ شوو اثارو په هکله له یو بل سره خبرې وکړي، بله ډلــه دې د پــژواک د لوستل شوي شعر معنا او مفهوم په خپلو ډلو کــې ولیکــي، ښوونکی دې له ټولو ډلو سره پوره مرسته او لارښوونه وکړي. | ـ زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم پــه خپلو ډلو کې د نومونو فعالیتونو په اجراکولوکې خپلــه ونډه اخلي. |
| ـ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه وغــواړي، چــې د لوستل شوي متن په مطلب باندې خبرې وکړي. | ـ زده کوونکي له لارښوونې سره سم د متن په مطلــب خبرې کوي. |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکوڅخه وغواړی چــې د مــتن لنډيز ووايي او د متن په مهمو برخو دې یو ځل بیا څرګندونې وکړي. | ـ زده کوونکي د متن لنډيز په خپله ژبه ووايي. |
| ـ ښوونکی دې په لومړي او دویم درسي ساعت کې په خپلــه خوښه او په دریمه ورځ د لوست د پای دنده زده کوونکوته و سپاري او په بله ورځ دې د زده کوونکو کورنۍ دنده وګوري او اصلاح دې کړي. | ـ زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع په خپلو کتابچو کې لیکي او په کورونو کې يې بشپړوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

قضاء: په لغت کې د حکم ادا کول او تقدیر په معنا،او داصطلاح له مخې د مخلوق په حق کې الٰهي حکم.

فرهنګ : د فرهنګ، کلتوراو ثقافت کلمه یو مفهوم لري او د یوه ولس یا ملت ټولې مادي او معنوي شتمنۍ تــه و یــل کېږي

اژانس: نشراتي او اطلاعاتي ارګان یاڅانګه

مطبوعات: د ټولنې د ټولنیزو، ښوونیزو، روزنیزو، دیني، اقتصادي، سیاسي، فرهنګي، طبیعي پېښو په باب لیکنې او ویناوې دي چې په صوتي او طباعتي ډول خلکو ته رسېږي.

مطبعه: د علمي آثارو د چاپ خونه.

په مطبوعاتو کې د هېواد علمي، ادبي، فرهنګي، تاریخي، سیاسي او ډېر نور مضامین چاپ او خپرېږي. نن سبا زمــوږ پــه

هېواد کې شخصي او رسمي مطبوعات په خپلو دندو کار پیل کړی دی او بېلا بېل علمي، ادبي، تاریخي، فرهنګي، هنري، اقتصادي او نور مضامین او کتابونه چاپوي او خپلو مینه والو ته یې وړاندې کوي.

**اضافي معلومات**

دلته غواړو چې د ښاغلي ښوونکي لپاره د نوم او د هغه د ډولونو په اړه یو څه معلومات وړاندې کړو، ځکــه د ژبــې زده کړه د ګرامري قواعدو په پام کې نیولو سره زده کېږي. بل دا چې زموږ په زیاتره دري ژبو ښوونځیو کې د پــښتو ژبــې ښوونکي لږ دي، د ځینو بیا مورنۍ ژبه دري ده، نو ځکه د دغو ښوونکو لپاره چې مورنۍ ژبه یې دري ده او د پښتو ژبــې مضمون تدریسوي اړینه ده چې د پښتو ژبې ګرامر په اړوند ماخذونو او منابعو ته مراجعه وکړي او ویې لــولي، ترڅــو د پښتو ژبې په تدریس کې له ستونزو سره مخامخ نشي او هم کولای شي، چې د زده کوونکو پوښتنو تــه ســم ځوابونــه ورکړي.

د نوم او د هغو د ډولونو په اړه په لنډه توګه معلومات وړاندې کوو.

**نوم**: نوم هغه کلمه ده چې یو څوک، یو ځای او یا یو شی پرې ونومول شي.

یا نوم د وینا هغې برخې ته وایي چې د هغه په واسطه یو شخص، ځاروی (حیوان) یا یو شی ونومول شي، لکه پــه لانــدې جملو کې احمد، حامد، زرغونه، ملالۍ، بادام ګل، پسه، خښته.

دنوم ډولونه دا دي،

خاص نوم، عام نوم، ذات نوم، د معنا نوم، د جنس نوم او د جمع نوم

۱ــ خاص نوم: هغه نوم دی، د ټاکلو اشخاصو او شیانو د نومونو لپاره کارول کېږي، لکه

ــ لوګر.

ــ احمد شاه بابا.

ــ کابل

ــ پاکستان

ــ هرات.

**۲ــ عام نوم:** عام نوم داسې نوم ته وایي، چې په یوه ټاکلي شخص یا څیز باندې دلالت نه کوي او د هغې ډلې ټول غــړي څرګندوي، لکه:

کتاب.

ــ پوهنتون.

ــ هلکان.

ــ نجونې.

ــ کوچیان.

**۳ــ ذات نوم:** ذات نوم داسې یو نوم نوموي چې زموږ په حواسوحس کېدای شي او بهرنی وجود ولري، لکه ډبره، اوبه، سړی ذات نومونه دي.

**۴ــ د معنا نوم:** د معنا نوم د ذات د نوم سرچپه يو غير محسوس شی يا پديده نوموي، يا په بله وينا هغه شی نوموي چې بهرنی وجود نه لري، لکه روغتيا، هيله، مېرانه، خوښي، درد، غم، انديښنه د معنا نومونه دي.

**۵ــ د جنس نوم:** هغه دی چې په لږو او ډېرو يو شان دلالت کوي، لکه سره زر، اوبه، غنم، جوار او تېل کلمې د جنس نومونه دي.

نوم د شمېر له پلوه په دوه ډوله دی، مفرد او جمع

**۱ــ مفرد نوم:** هغه نوم دی چې د يوې ډلې يو شخص يا يو څيز باندې دلالت وکړي لکه: هلک، ونه، کتاب، قلم، غوا.

**۲ــ د جمع نوم:** جمع هغه نوم دی، چې له يوه څخه زيات اشخاص، شيان، يا څاروي ونوموي، لکه هلکان، ونې، کتابونه، قلمونه، غواګانې د جمع نومونه دي.

**اخځليکونه:**

ــ پښتو تشريحي قاموس، څلورم ټوک

ــ زيار، ډاکټر مجاوراحمد – پښتو پښويه

ــ رښتين، پوهاند صديق الله ژب ښوونه

## پنځلسم لوست

**د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | مېرمن حمیده | |
| **د زده کړې (پــوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ مېرمن حمیده به د یوې شاعرې په توګه وپېژني.<br>ـ په ټولنه کې به د شعر په ارزښت پوه شي.<br>ـ د شعر د مفهوم په هکله به خبرې وکړای شي.<br>ـ که چېرې شاعرانه استعداد ولري نو شعرویلو ته به وهڅول شـــي او پـــه خپله به شعر ووایي.<br>ـ د مېرمن حمیدې د شعر او شاعرۍ په هکله به معلومات وړاندې کړي.<br>ـ په متن کې به د نوو لغتونو په معنا او مفهوم پوه شي او په جملو کې به یې وکاروي.<br>ـ په متن کې به د صفت کلمې پیدا کړای شي.<br>ـ متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>– د متن د پای فعالیتونه به په یوازې توګه حل کړای شي | |
| **د تدریس لارې** | لوستل، لیکل، پوښتنې، ځوابونه او خبرې کول | |
| **د تـــدریس وســـیلې او مرستندوی توکي** | د صفت د کلمو لیکلي کارتونه، کتاب، قلم، تخته، تخته پاک او مارکر | |
| **د ارزونې لارې** | شفاهي ارزونه او تحریري ارزونه، دپوښتنې او ځواب په وســیله ارزونـــه، د لیکلو ارزونه او د خبرو کولو ارزونه | |
| **د زده کړې او تـــدریس فعالیتونه** | سلام کول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کـــورنۍ دنـــدې کتنه او اصلاح کول | ۴ دقیقې |
| **د انګېزې رامنځته کول** | ښوونکی دې لوست په لاندې پوښتنو پیل کړي او هـــم کـــولای شـــي دې پوښتنو ته ورته نورې پوښتنې هم له زده کوونکو څخه وکړي.<br>– په خپل کلي کې مو کومه ښځینه شاعره ژوند کوي ؟<br>د هغې په اړه څه ویلی شئ؟<br>ـ د پښتنو په اوسنیو شاعرانو کې څوک پېژنئ؟ نومونه یې واخلئ.<br>ـ د کومې پښتنې ښځینه شاعرې شعرونه او آثار مو لوستلي دي؟<br>ـ د مېرمن حمیدې د شعر او شاعرۍ په هکله موڅه اورېدلي دي؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| ـ ښوونکی زده کوونکو ته لارښوونه کوي چې د متن ټــاکلې برخه د څو شېبو لپاره په پټه خوله لـــه ځـــان ســـره ولـــولي او | ـ زده کوونکي په چوپه خوله د متن ټاکلې برخه لولي او ستونزمنې کلمې په نښه کوي او معنایې له ښوونکي | |

| | |
|---|---|
| ستونزمنې کلمې دې په نښه کړي. | څخه پوښتي. |
| ـ ښوونکی دې د متن کلمې او جملې په مناسب اواز ولولي او بیادې په څو زده کوونکو باندې د لوست یو یو پراګراف په وار سره و لولي. په لوستلو کې دې له زده کوونکو سره مرسته وکړي. ترڅو د هغوی د لوستلو مهارت پیاوړی شي. همدارنګه د شعر بېلګه دې پر زده کوونکو باندې د شعر په ډول ولولي. | ـ څو زده کوونکي په وار سره د متن یو یو پراګراف په مناسب غږ لولي او په لوستلو کې ډېر دقت کوي. |
| – ښوونکی دې د متن په نښه شوې کلمې د زده کوونکو په واسطه د تختې پر مخ ولیکي. نوروته دې وخت ورکړي چې د کلمو په معنا کولو کې برخه واخلي او دنوموړو کلمو معنا پر تختې ولیکي. پاتې زده کوونکو ته دې لارښونه وکړي چې په خپلو کتابچو کې کلمو ته جملې جوړې کړي. | – څو زده کوونکي د ښوونکي په لارښوونه په وار سره په نښه شوې کلمې د تختې پر مخ لیکي او څو نور زده کوونکي د هغو معنا پر تختې لیکي. د نیمګړتیا په صورت کې دې نورزده کوونکي ورسره مرسته کوي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکي په وار سره د تختې مخې ته راوغواړي چې له متن څخه څو د صفت کلمې پر تختې ولیکي او په وار سره ورته مناسبې جملې جوړې کړي. نور زده کوونکي دې هماغه په خپلو کتابچو کې ولیکي. د نیمګړتیا په صورت کې دې وسره پوره مرسته وکړي. | ـ زده کوونکي په وار سره د تختې مخې ته راځي، څو د صفت کلمې پر تختې لیکي او په مناسبو جملو کې یې کاروي، د نیمګړتیا په صورت کې نور زده کوونکي ورسره مرسته کوي. |
| ـ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه وغواړي چې په وار سره د مېرمن حمیدې د شعر او شاعرۍ په هکله په پښتو ژبه خبرې وکړي. | ـ زده کوونکي په علاقمندۍ د ټولګي په وړاندې د مېرمن حمیدې د شعر او شاعرۍ په هکله څه چې یې زده وي، په خپله ژبه نورو ته معلومات وړاندې کوي. |
| – ښوونکی دې دوه تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته را وغواړي. یو تن زده کوونکی له متن څخه یو پرګراف په پښتو ژبه لولي او دویم زده کوونکی دې د پاراګراف مفهوم په دري ژبه تر جمه کړي. | – دوه تنه زده کوونکي د ښوونکي د لارښوونې سره سم د ټولګي مخې ته راځي. یو زده کوونکی یو پاراګراف لولي او بل زده کوونکی یې په دري ژبه ژباړي (ترجمه) |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه د دې لوست د پوهېدولپاره د اتم فعالیت پوښتنې د ارزونې په توګه وکړي. د زده کوونکو ځوابونه دې په دقت واوري او د نیمګړتیا په صورت کې دې د ځینو پوښتنو ځوابونه په خپله وړاندې کړي. | ـ زده کوونکي د ارزونې پوښتنو ته مناسب ځوابونه ورکوي. |
| ـ ښوونکی د مېرمن حمیدې د متن لنډیز بیانوي.<br>ـ ښوونکی زده کوونکوته د پښتو د لوست په لومړي او دویم درسي ساعت کې په خپله خوښه او په دریم ساعت کې د لوست د پای کورنۍ دنده سپاري او په بله ورځ یې ګوري او اصلاح کوي یې. | ـ زده کوونکي د ښوونکي خرګندونو ته په دقت غوږ نیسي او ځانونه پوهوي.<br>ـ زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع لیکي او په کورونو کې یې بشپړوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

ادب: د عزت، خاطر، سرېتوب، تهذیب،علم، زده کړې، حیا، تربیت او پالنې پر معناوو کارول کېږي.

ادبیات د ادب جمع ده: ادبیات ټول هغه چاپ او ناچاپ شوي اثار که نظم وي او که نثر چې هنري ارزښت ولري

ادبیات ګڼل کېږي.
بیان: وینا، خبرې، هغه خبرې چې په مفصل ډول د یو چا له خوا یو تن او یا یوې ډلې ته کېږي.
ټولنه: د انسانانو ګڼې ډلې ته وایي چې یو له بل سره راز راز اړیکې لري.

**اضافي معلومات**

مېرمن حمیده: مېرمن حمیده د ارواښاد سیدحضرت شاه لور وه چې په ۱۲۹۷هـ. کال د بـر کـونړ پـه ولایـت، د شینکوړک په کلي کې زېږېدلې وه.

مېرمن حمیدې نه یوازې په شعر ویلوکې روانه طبع لرله، بلکې په نثرلیکلو کې هم د پوره استعداد څښتنه وه.

مېرمن حمیدې په خصوصي توګه د هغه وخت له عالمانو څخه په کور کې علمي درسونه لوستي او له ادبیاتو سره یې زیاته مینه درلوده. دې له ماشومتوب څخه د شعر ویلو طبع لرله او په ماشوموالي کې یې ښه لیکل کول.

د مېرمن حمیدې شعرونه ډېر ساده، اسان او خوندور دي چې ځینې شعرونه یې د ننګرهار په ورځ پاڼو او کابل مجلې کـې چاپ شوي دي.

مېرمن حمیدې به تل له خلکو سره په ورین تندي خبرې کولې، بې وزلو او شتمنو ته به یې په یوه سترګه کتل، هر څـوک به چې د دې لیدلو او ادبي مرکو لپاره راتله، نو دې به ورته ډېر ښه هر کلی کاوه. د دغې پېښتې مېرمنې خبرو اترو به پـه خلکو ډېره اغېزه کوله او خلک به یې په مرکو نه مړېدل.

مېرمن حمیدې په ۱۳۲۶هـ. کې د ښاغلي عبدالغفور خان چې د لغمان اوسېدونکی او د ماما زوی یې هم و واده وکړ.

مېرمن حمیده په ځوانۍ کې د زړه په ناروغۍ اخته شوه. سره له دې چې په ناروغۍ اخته وه، خو بیا هم د علم، ادب ډېـره لېواله وه او په ژوند کې یې خپلو منظومو او منثورو لیکنو ته په مینه دوام ورکړ. دغه نومیالۍ مېرمن په ۱۳۳۹لمریز کـال له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړي او د کونړ په شینکوړک کلي کې خاورو ته سپارل شوې ده.

د مېرمن حمیدې د اشعارو یوه بېلګه دا ده:

| | |
|---|---|
| بهار بیا راوړل ځولۍ ځولۍ ګلونه | دشت دامان وهي په ګلو بیا موجونه |
| د شهید جامه په تن د ارغوان ده | تازه کاندي هر ریدی د زړه داغونه |
| دا ریدي دي چې ګل شوي په دامان دي | که راغلي دي د وینو سره رودونه |
| بورا هر خوا ته د زیري پیغام یوړو | وایي راشه چې له ګل کړو طوافونه |
| جوړ امېل د مرغلرو دی شلېدلی | دا چې برېښي هرې خواته شبنمونه |

**د مېرمن حمیدې د نثر بېلګه دا ده**

**د یوې پېغلې ارمان:**

پېغله وایي، مورکې! زه چې ځان سره فکر وکړم، نو وایم ځار شم د وطن له تورو خاورو او تورو غرونو، تر هغـو سـپینو کاڼو او لوړو لوړو بنګلو نه چې واک یې د بل وي.

قربان شم د دې پاکې او آزادې هوا نه او سر مې لوګی شه د وطن د آزادۍ په لار کې مورا! ها بله ورځ چې تا راتـه د میوند د شهیدانو نکل کاوه، څومره ارمان مې کړی دی چې کاشکې زه هم هلته وای چې دغو د آزادۍ شهیدانو ته مـې په خپل سر د اوبو منګي وړي وای، ډوډوۍ مې ورسولې وای، کارتوس او ټوپک مې وروړي وای او ورسره اوږه پـه اوږه جنګېدلې وای.

**اخځلیکونه**

ـ اوسني لیکوال، لومړی ټوک، عبدالرؤوف بېنوا

# شپاړسم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | امیر حمزه شینواری | |
| د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ــ امیر حمزه شینواری به وپېژني، د نوموړي د شعر، شاعرۍ او د شعرونو د بېلګو په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>ــ متن (شعر او نثر) به سم او روان ولوستلای شي، په مفهوم به یې وپوهېږي او د متن لنډيز به بيان کړای شي.<br>ــ د نوو کلمو په معنا او مفهوم به وپوهېږي او دامير حمزه شينواري په اړه به خبرې وکړای شي.<br>ــ په متن کې به خاص او عام نومونه وپېژني او په کتابچو کې به يې وليکي.<br>ــ خاص او عام نومونوته به مناسبې جملې جوړې کړای شي.<br>ــ د لوست د پای دفعاليتونو پوښتنو ته به مناسب ځوابونه وويلای شي. | |
| د تدریس لارې | لوستل، پوښتنې او ځوابونه، خبرې کول، ليکل يوکسيز کار او ډله يزکار | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | کتاب، تخته، تباشير،قلم، کتابچې او د امکان له مخې د امير حمزه شينواري د شعرونو چاپ شوی کتاب | |
| د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، تحريري ارزونه، د پوښتنې او ځواب په وسيله ارزونه او د تحريری ارزونه | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام وړاندې کول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخيستل او د کورنۍ دندې کتنه. | ۴ دقيقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی دې لوست په لاندې پوښتنو پيل کړي او هم کولای شي دې پوښتنو ته ورته نورې پوښتنې له زده کوونکو څخه و کړي.<br>ــ د پښتو په اوسنيو شاعرانو کې څوک پېژنئ؟<br>ــ د کومو اوسنيو شاعرانو د نظم او نثرله کتابونو سره بلد ياست؟<br>ــ د امير حمزه شينواري په هکله څه پوهېږئ؟ | ۶ دقيقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقيقې |
|---|---|---|
| ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې متن په چوپه خوله له ځان سره ولولي، کوم زده کوونکي چې په لوستلوکې ستونزې لري ورسره دې مرسته وکړي. | ــ زده کوونکي د لارښوونې سره سم متن په چوپه خوله لولي، که دکوم لفظ په تلفظ کې ستونزه لري، له ښوونکي څخه پوښتنه کوي. | |
| – ښوونکی دې متن په مناسب غږولولي او بيادې په څو | – څو زده کوونکي په وار سره د متن يو پراګراف لولي او | |

| | |
|---|---|
| زده کوونکو یو یو پراګراف په وار سره ولولي، په لوستلو کې دې له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې په لوستلو کې کمزوري دي | خپلو لفظي تېر وتنو ته متوجه کیږي. |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې په خپله خوښه په متن کې خاص او عام نومونه په نښه کړي، بیا دې له یوه تن څخه و غواړي چې نښه شوې کلمې پرتختې ولیکي، له څو نورو زده کوونکو څخه دې وغواړي، چې په وار سره یوه نوم ته جمله جوړه کړي او پر تختې یې ولیکي، ښوونکی دې ورسره مرسته وکړئ. | ــ زده کوونکي په خپله خوښه خاص او عام نومونه په نښه کوي او څو تنه نور ورته جملې جوړوي او پر تختې یې لیکي. |
| ــ ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې د امیر حمزه شینواري په اړه یې، چې څه زده کړې وي په خپله ژبه نورو ته معلومات وړاندې کړي. | ــ څو زده کوونکي د امیر حمزه شینواري په اړه معلومات ورکوي. |
| – ښوونکی دې له زده کوونکو څخه ازادې پوښتنې وکړي چې له درس سره تړاو ولري. | – زده کوونکي ازادو پوښتنوته ځوابونه ورکوي |
| ــ ښوونکی دې د متن د لنډیز تشریح وکړي او بیادې د متن لنډیز له څو زده کوونکو څخه وپوښتي. | ــ زده کوونکي د ښوونکي څرګندونو ته په دقت غوږ نیسي او بیا په خپله خوښه د متن لنډیز په خپله ژبه بیا نوي. |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته سپارښتنه وکړي چې د امیر حمزه شینواري د شعر مفهوم په لنډه توګه ولیکي. | ــ زده کوونکي د امیر حمزه شینواري د لوستل شوي شعر مفهوم په څو کرښو کې لیکي. |
| – ښوونکی دې دوه تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راوغواړي. یو تن دې دامیر حمزه د شعر څو بیتونه ولولي او بل دې د بیتونو مفهوم په دري ژبه ووایي. | – دوه تنه زده کوونکي د ښوونکی له لارښوونې سره سم نوموړي فعالیت تر سره کوي. |
| ــ ښوونکی زده کوونکوته په لومړي او دویم درسي ساعت کې په خپله خوښه او په دریمه ورځ د لوست د پای کورنۍ دنده سپاري او په بله ورځ یې وګوري. | ــ زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع لیکي او په کور کې یې بشپړوی اود بلې ورځې په درسي ساعت کې یې راوړي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

**پښتو**: یوه لرغونې آریایي او د ټولو پښتنو ژبه ده، پښتانه نرینه او ښځې په همدې ژبه (پښتو) غږیږي. دا مېړنی ولس په اصل کې آریایان دي چې په بلخ (بخدي) کې یې سره ژوند کاوه. پښتو د نسبتي (و) په زیاتوالي سره د پښت ــ پکهت تیر ته منسوببږي او پښت یا پکهت هماغه ستره آریایي قبیله ده چې لږ و ډېر ۳۴۰۰ کاله پخوا یې د ریګویدا په سندرو یا مذهبي سرودونو کې یادونه شوې ده.

**عرفان**: په لغت کې پیژندنه، د حق معرفت، یوه دیني او الهي نظریه ده چې وایي: انسان د عقلي استدلال له لارې دعلم د حقایقو په کشف او د الله‌ﷻ په درک کولو قادر نه دی او یوازې د باطني مستقیمو شهودو له لارې ممکنه ده چې ځان د علم دغه پړاو ته ورسوي، هغه وخت چې د خپل ضمیر څخه شهوتونه، فسادونه او پلیتۍ لرې کړې (نوهاله به هغه د

بصیرت په سترګو ووینې)

**لنډې کیسې**: هغو کیسو ته وايي چې تر ناول څخه لنډې وي او په هغو کې لیکوال د یوې منظمې طرحې پــه مرســته، اصلي کرکټر په یوه اصلي پیښه کې ښکاروي لنډه کیسه په لرغوني مفهوم ناول نه دی، ضمني پیښه نه ده، بلکې منظمــه او ټاکلې طرحه لري، یو اصلي کرکټر (اتل) لري، دغه اتل په یوه اصلي پیښه کې ځان څرګندوي، په کلــي توګــه ټــول توکي يې يوله بله سره د متقابلو اړیکو په درلودو سره جوړښت مومي، واحده اغېزه ښندی او لنډه ده. دا لنـــډې کیـــسې نورې ځانګړتیاوې دادي: لنډون، نوښت، د کار په طرز کې یووالی، د زمان او مکان یووالی.

**ډرامه**: ډارمه یا ډرام یوناني کلمه ده چې د چارې، عمل، اکشن ، نمایش، ننداره او تیاتر معناوې لري.
ډرامه: هغه ادبي اثر (کامپوزېشن) ته وايي چې د محاورې او عمل په مرسته یوه موضوع بیانوي، ډرامې په څو ډولونو دي لکه ستېج ډرامه، راډیويي ډرامه، تلویزیوني ډرامه او سینمايي ډرامه. په عمومي ډول په ډرامو کې کومیـــډي او تراژیـــدي ډرامې شاملې دي. او زیاتره انساني تضادونو اود ټولنې بد بختیو ته ګوته نیسي، لیدونکو او اوریدونکو ته د خلاصـــون او سموالي پیغام ورکوي.

**نکلونه**: ساده ولسی روایتونه دي چې د خپلې زمانې د خلکو او ټولنیزو حالاتو څرګندونه کوي. د روزنیز اړخ په څنـــګ کې د ماشومانو او ځوانانو لپاره سرګرمونکي هم دي.
**ادبي راپورتـاژ**: د هنري ادبیاتو ځانګړی ډول دی له عادي راپورتاژ سره چې یو ژورنالیستکي ډول دی جـــوت تـــوپیر لري چې په ادبي راپور تاژکې د پیښی تعبیر او څېړل په ادبي او هنري ژبه شوی وي او هر څه په خوږه هنری ژبه نورو ته وړاندې کوي.

**اضافي معلومات**

د حمزه شینواري په باب ډېرو ادیبانو لیکنې کړې دي. څرنګه چې په دغو لیکنو د غزل پر ماهیت هم رڼا اچول شـــوې ده نو د لوستونکو د استفادې لپاره به یو څو بیلګې دلته راوړل شي.

نامتو ادبي مؤرخ دوست محمد کامل وايي: ((ښاغلی حمزه د یو خوږمن زړه او فکرمن دمـــاغ څـــښتن دی او سره له دې دولته الله ﷻ ورته یو روڼ تخیل او شګفته مزاج هم بخښلی دی. ډېرو کسانو به د فلسفې، ســـاینس او فنونـــو کتابونه د ښاغلي حمزه نه زیات لوستي وي، خو تر څوچې زما د علم او تجربې تعلق دی داسې کسان ډېر لږدي چې ژوند او کاینات طرف ته يې مخ دومره فیلسوفانه او سیاسي وي، لکه ښاغلی حمزه او په ښکلا او ښایست دومره مـــین، لکـــه هغه.))

طاووس شینواری لیکي: ((......... حمزه د نقاش فطرت او د خپل وخت حافظ شیرازي دی. ښه لیکونکی او ډېر ښه غزل ویونکی دی. د غزل لمن یې دومره ارته کړې ده چې د هر رنګه ژوند مسرتو نه او خوشحالۍ پکې شـــته او دهر لوستونکي د طبیعت برابرسامان لري. داسې نوي نوي ګلونه يې کرلي دي چې ښایست يې دایمي خوشـــحالي ده. د حمزه بابا شعرونه هغه قیمتي لعلونه دي چې تراشل نه غواړي، هغه ښایسته ناوې چې د سینګار محتاجه نه وي،))

حمزه یو کامیاب شاعر دی او په اصلي معنا کې شاعرانه زړه او دماغ لري دده د شاعرۍ خپل رنګ دی او هـــم دغه وجه ده چې په کلام کې يې جذابیت او خوند دی ....... په کلام کې يې داسې سوز، شیریني او خاموشه روانـــي ده

چې زړه ته تسکین او روح ته لذت ورکوي. اجمل خټک د دغه نامتو شاعر په اړه داسې لیکي:« د حمزه صاحب په حیث د لیکوال، ادیب، شاعر، عالم، نقاد او فلسفي دومره ژور نظر او وسیع تابلو لري چې نن د ژوند او فن داسې مضمون نشته چې هغه پرې د قلم سیند په ګډا ګډا زغلولی نه وي».

د حمزه شینواري اثار دادي:

۱– د زړه آواز: نعتیه منظوم کلام دی چې چاپ شوی.

۲– سفرنامه: د کابل د سیاحت منظوم حالات دي چې په ۱۹۴۸ کال یې نظم کړې خو چاپ شوی نه دی.

۳– نوی پښتون: د سفرنامې په شکل لیکل شوی چې خپل د کابل د سفر یاد داشتونه یې غونډ کړي او چاپ شوی هم دی.

۴– نوې چپې: چاپ شوی ناول دی.

۵– غزونې: د غزلو مجموعه ده چې په ۱۹۵۶ ع کال چاپ شوې ده.

٦– د کارل مارکس اصول د عقل په نظر کې: لاچاپ شوی نه دی.

۷– سوانح: دا د حمزه صاحب خپله بشپړه سوانح ده، خو چاپ شوی نه دی.

۸– تجلیات: تصوفی منشور کتاب دی چې چاپ شوی دی.

۹– تذکرة الستاریه: داهم تصوفي منثور کتاب دی چې تراوسه چاپ شوی نه دی

۱۰– د لیلی او مجنون ډرامه: د فلم په توګه ښودل شوې ده.

۱۱– لیکی شوي خطونه: چاپ نه دي.

۱۲– د خوشحال بابا یو شعر: چاپ شوی دی.

**اخځلیکونه**


ــ پښتو تشریحي قاموس، ۴ ټوک

ــ د پښتو نثر هنداره، پوهاند صدیق الله رښتین

ــ روهی، کاندید اکاډمیسن سر محقیق د پښتو ادبیاتو تاریخ دویم ټوک

# اووه لسم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د پښتو ادبیاتو لرغونې دوره | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي.<br>ـ د ادبیاتو په تعریف به وپوهېږي.<br>ـ د پښتو ادب لرغونې دورې په معنا او مفهوم به وپوهېږي.<br>ـ د پښتو ادبیاتو لرغونې دورې د نامتو شاعرانو او دهغو د شعرونو په هکله به معلومات ترلاسه کړي.<br>ـ د امیر کروړ د شاعرۍ په هکله به په پښتو ژبه خبرې وکړای شي.<br>ـ د امیر کروړ شعربه سم او روان ولوستلای او په معنابه يې پوه شي. | |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، خبرې کول، ټولنیزکار، ډلیزکار | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | کتاب، تخته، او د امکان په صورت کې په یوه چارټ کې د بیت نیکه مناجات په ښکلي خط سره لیکل او ترتیبول | |
| د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، تحریري او د لوستلو ارزونه، د پوښتنې او ځواب په وسیله ارزونه | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام وړاندې کول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورنۍ دندې کتنه او د تېر لوست ارزونه. | ۴ دقیقې |
| د انگېزې رامنځته کول | ښوونکی دې لوست په لاندې پوښتنو پیل کړي او هم کولای شي دې ته ورته نورې پوښتنې هم له زده کوونکو څخه و کړي:<br>ـ ستاسو په نظر د ادبیاتو تاریخ څه ته وايي؟<br>ـ د پښتو ادب د لرغونې دورې په هکله مو څه اورېدلي دي؟<br>ـ کولای شئ چې د لرغونې دورې د یو څو شاعرانو نومونه واخلئ؟ | |
| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي، چې متن په چوپه خوله له ځان سره ولولي او که له کوم داسې لفظ سره مخامخ شي، چې هغه نشي تلفظ کولای، نو هغه دې په نښه کړي.<br>ـښوونکی دې متن په مناسب غږ ولولي او بیا دې په څو زده کوونکو د متن یو یو پراگراف په وار سره ولولئ، په لوستلو کې دې له هغو زده کوونکو سره مرسته وکړي چې په لوستلو کې ستونزې ولري.<br>ـ ښوونکی دې د متن په نښه شوې کلمې د زده کوونکو په | ـ زده کوونکي په چوپه خوله د متن ټاکلې برخه لولي، ستونزمنې کلمې په نښه کوي او د متن په اصلي مفهوم ځانونه وپوهوي.<br>ـ څو زده کوونکي په وار سره د متن یو یو پراگراف لولي او خپلو لفظي تېروتنو ته پاملرنه کوي.<br><br>ـ څو زده کوونکي په وار سره نښه شوې کلمې د تختې پر مخ لیکي او بیا يې معنا هم ترڅنگه لیکي او څو نور زده کوونکي ورته جملې جوړوي او پر تختې | |

| | |
|---|---|
| واسطه د تختې پر مخ وليکي، څو نورو ته دې وخت ورکړئ، چې د کلمو معناوې ووايي او د تختې پر مخ يې د کلمو ترڅنګ وليکي، د نيمګړتيا په صورت کې دي ورسره لازمه مرسته وکړي، له څو نورو زده کوونکو څخه دې وغواړي چې کلمو ته جملې جوړې کړي او پر تختې يې وليکي. | يې ليکي، پاتې زده کوونکي يې په کتابچو کې ليکي.<br>- زده کوونکي په خپلو ډلو کې نوموړې فعاليت ترسره کوي هم د ښوونکي څرګندونوته غوږ نيسي او خپل معلومات بيانوي. |
| - ښوونکي دي زده کوونکي په دوو ډلو ووېشي، يوې ډلې ته دې سپارښتنه وکړي چې په متن کې د اشخاصو نومونه پيدا کړي او بلې ډلې ته دې ووايي چې د کتابونو نومونه وليکي. بيادې د هرې ډلې له استازي څخه وغواړي، چې د تختې پر مخ يې وليکي، ښاغلی ښوونکی دې ورسره مرسته وکړي دې د لرغونې دورې د ليکوالانو او د هغوی د اثارو په هکله دې لنډې خبرې وکړي. | |
| - ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه وغواړي چې په وار سره د لرغونې دورې په ځانګړتياوو خبرې وکړي. د نيمګړتياوو په صورت کې دې ورسره لازمه مرسته وکړي. | - څو زده کوونکي په وار سره د لرغونې دورې په ځانګړتياوو خبرې کوي. |
| - ښوونکی دې د بيټ نيکه مناجات چې په چارټ کې مو مخکې له مخکې تيار کړی دی، د تختې پر مخ وځړوئ او له زده کوونکو څخه وغواړئ چې د مناجات معنا او مفهوم په خپلو کتابچو کې وليکي، بيا دې له څوزده کوونکو څخه وغواړي چې هغوی خپله ليکنه ووايي. | - زده کوونکي هر يو په ځانګړې توګه لومړی د چارټ له مخې مناجات او بيا يې معنا او مفهوم په کتابچو کې ليکي. او څوتنه يې د ښوونکی له لارښوونې سره سم په ټولګي کې وايي. |
| - ښوونکی دې دوه تنه زده کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي چې د لوست څخه يو پراکراف ولولي او بل تن دې دلوستل شوي پراګراف مفهوم په دري ژبه ووايي او دالړۍ دې ښوونکی په هر درسي ساعت کې په پام کې ونيسي. | - يو زده کوونکی د متن پراګراف لولي، بل زده کوونکی دې د پراګراف معنا په دری ژبه ووايي. |
| - ښوونکی دې د لوست ارزونه د اووم فعاليت په پوښتنو پيل کړي او د څو نوو پوښتنو په کولو سره دي خپل ډاډ تر لاسه کړي. | - زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم پوښتنو ته ځوابونه ووايي. |
| - ښوونکی دې زده کوونکو ته په لومړي او دويم درسي ساعت کې په خپله خوښه او په درېمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده وسپاري او په بله ورځ دې هغه وګوري او اصلاح دې کړي. | - زده کوونکي د کورنۍ دندې سپارل شوې موضوع په کتابچو کې ليکي او په کورنوکې بشپړوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

کلاسيک: لرغونی، پخوانی او تاريخي هر هغه علمي، ادبي، هنري او ... نور اثار چې په پخوانيو زمانو پورې اړه لري.

حماسي سندره: د تورې، مېړانې او شجاعت کلام او وينا.

سالو: پړونی، ټیکری
**ژبه**: د صوتي سمبولونو یو داسې اکتسابي او قراردادي سېستم دی چې د یوې ټولنې ټول وګړي یې د خپلو مفاهیمو لپاره کاروي.
یا ژبه د پوهولو او راپوهولو وسیله ده، یا دا چې ژبه د احساساتو او اندېښنو څرګندولو او تفهیم ته وایي.
دسالو وږمه: د دغه با ارزښته اثر لیکوال ابومحمدهاشم سرواني نومېږي. نوموړی کتاب د پښتو ژبې په نثر کــې لــومړنی لیکل شوی کتاب دی. ابومحمدهاشم سرواني په ۲۲۳هــ.ق. کال په هلمند کې زېږېدلی دی. د دغه لیکوال دغه اثر لا تر اوسه پورې موږ ته په لاس نه دی راغلی.
کوکار: چیغه، کریکه
زمولوي: مړاوی کوي، ناتوانه کول، کمزوری کول
چارې: کړنې، عملونه، کارونه
ولونل: ویې شیندل، ویې پاشل
سالو: ریګستان
د سالو وږمه یعنې د ریګستان وږمه
زابل: زموږ د ګران هېواد یو تاریخي ولایت دی، چې مرکز یې قلات دی. د زابل ولایت د کندهار او غزنــي د ولایتونــو ترمنځ موقعیت لري. اکثره اوسېدونکي یې په پښتو ژبه خبرې کوي.
غازي: جمع یې غازیان، څوک چې د الله ﷻ په لار کې د اسلام له دښمنانو سره جګړه وکړي.
سند: د لویدیځ پاکستان یو ایالت دی چې خلک یې په سلو کې اویا مسلمانان دي.
ادب: (۱) عزت، سرېتوب (۲) تمیز، تهذیب، تعظیم (۳) حیا، پرده (۴) تربیت، پالنه
جمع یې ادبیات دي، ادبیات: هغه لیکلي اثار دي چې هنري ارزښت ولري.
یا د بشر هغه فکري او هنري خلاقیت او لطافت چې د ژبې په وسیلې سره د یوه او یا بل ولــس د کلتــور او دودونــو ښکارندوی او ممثل وي.
کروړ: (۱) کلک، سخت، غښتلی
خراسان: مرکبه کلمه ده چې (خُر) د لمر او (اسان) د ځای معنا ورکوي چې مفهوم یې ختېځ، له هغه ځای څخه چې لمر راخېژي. دغې کلمې د دویمې زېږدیزې پېړ ۍ څخه وروسته ظهور کړی او د فارس د ساسانیانو په وخت کــې (پنځمــه میلادي پېړۍ) هغو ځمکو ته خراسان ویل کېده چې دایران په ختېځ کې پرتې وې لکه: مرو، بلخ، تخارســتان، هــرات، فوشنج،بادغیس، سیستان او ماورالنهر چې وروسته د افغانستان ټولې خاورې ته اطلاق شو.
مندېش: په غور کې د امېر پولاد او د ده د کورنۍ د پاچاهۍ مرکزو.
پوشنج: د یوه ځای نوم دی.

**اضافي معلومات**
د پښتو ادبیاتو د رامنځته کېدو لومړني درې مرکزونه
غور: غور د افغانستان یوه لرغوني او تاریخي سیمه ده چې د پاچاهیو سلسلې پکــې تېــرې شــوي دي اود د ې ســیمې پاچاهانو د اسلام د سپیڅلي دین د خورولو په چارو کې هم لویه برخه درلوده. د پښتو په لرغونو استوګنځیو کې یوه هم د غور سیمه ده چې د غور له سوریانو سربېره د پښتنو د ځینو نورو قبایلو بنسټ هم په دې سیمو کې ایښودل شــوی دی. د

پښتنو په قبایلو کې يوه لويه قبيله د غوري يا غورياخېلو پښتنو ده چې د تاريخي اثارو او څېړنيزو کتابونو د رواياتو له مخې د کند بن خرښبون بن سړبن په اولاده کې د غوري په نامه د يو تن ذکر راغلی دی.
د مخزن افغاني د روايت له مخې د دې سړي اصلي نوم شيخ ابراهيم و، خو څرنګه چې په غور کې زېږېدلی و، نو ځکه د غوري په نامه مشهور او اولاده يې تر اوسه پورې د غوري يا غورياخېلو په نامه يادېږي، په غوري پښتنو کې څلــور لـــويې قبيلې شاملې دي، دولت يار، خليل، زيړاني او ځمکني چې بيا دې هرې قبيلې ته نورې لسګونه پـــښتنې قبيلـــې او پـــښې منسوبې دي.
د غور اوسني مرکز چغچران، ختيځ ته يې اوس هم د دولت يار په نامه يو کلی شته چې د غوري پښتنو د دولـــت يـــار د قبيلې له نامه سره اړه لري.
د استاد پوهاند عبدالشکور رشاد د څېړنې له مخې دغه غوري پښتانه د چنګېز خان ۶۲۴هــ. کال کې مړ، لـــه بربـــدونو څخه وروسته له غور څخه کوچېدلي دي، مخ په سويل او ختيځ رالېږدېدلی دي.
دغه د غور شاهي کورنۍ په تاريخونو کې شنسبيانو په نامه هم مشهوره شوې ده او دا ځکه چې د دې کورنۍ يـــو مـــشر نيکه شنسب نومېده، شنسب د حضرت علي‌ﷺ په زمانه کې مسلمان شوی او د غور پاچا منلی شوی دی. د شنسب زوی (اميرپولاد) سوري و چې د خپلو پلرونود اتلوالۍ نوم يې بيا را ژوندی کړ، هغه وخت چې ابومسلم مروزي د بنـــي اميـــه اميران له خراسان څخه وشړل، د بني عباس په پلوۍ ودرېد، نو امير پولاد د غور لښکرې د ابو مسلم په مرسته وکوچولې او د ال عباس د پاچاهۍ تينګښت لپاره يې ډېرې هڅې وکړې. د امير پولاد د پاچاهۍ مرکز د غور په مندېش کې و، کلـــه چې دی مړ کېده، نو پاچاهي يې خپلو زامنو ته وسپارله. امير کروړ د غور کلاوې بالشتان، خيسار، تمران، بر کوشـــک او نور ونيول. د ده پاچاهۍ دوه مرکزونه درلودل، يو مندېش بل زمينداور و، امير کروړ ډېر غښتلی پهلوان و، چې په يـــوازې ځان به له سلو تنو سره جنګېده. ده هم د عباسي دعوت په جنګونو کې ګډون درلود او ډېرې برياوې يې ترلاسه کـــړې.
امير کروړ يو عادل پاچا و او له دې سربېره ده په پښتوژبه اشعار هم ويل. امير کروړ په ۱۵۴هـــ. کـــال د پوشـــنج پـــه جګړو کې مړ شو او پر ځای يې د ده زوی امير ناصر پاچا شو. د امير کروړ کوم شعر چې پټـــې خزانـــې راوړی دی، دا دی:

زه يم زمری پر دې نړۍ له ما اتل نسته
په هند و سند و پر تخار او پر کابل نسته
بل په زابل نسته     له ما اتل نسته

غشي د من مې ځي برېښنا پر ميرځمنو باندې
په ژوبله يو نم يرغالم پر تښتېدونو باندې
پر ماتېدونو باندې     له ما اتل نسته

زما د بريو پر خول تاوېږي هسک په نمنځ او په وياړ
د اس له سوومې زمکه رېږدي غرونه کاندم لتاړ
کړم ايوادونه ويجاړ     له ما اتل نسته

زما د توري تر شپول لاندې دی هرات و جرم
غرج و باميان و تخار بولي نوم زما په اودوم
زه پېژندوی يم په روم     له ما اتل نسته

پر مرو زما غشي لوني، ډاري دښن راځخه
د هري رود پر څنډو ځم تښتي پلن راځخه
رېي زړن راځخه     له ما اتل نسته

د زرنج سوبه مې د توري په مخسور وکړه
په باداري مې لوړاوی د کول د سور وکړه
ستر مې تربور وکړه     له ما اتل نسته

خپلو وګړو لره لور پيروزينه کوم
دوی په ډاډينه ښه بامم ښه يې روزنه کوم
تل يې ودنه کوم     له ما اتل نسته

پر لويو غرو مې وينا درومي نه په څنډو په ټال
نړۍ زما ده نوم مې بولي پر دريځ ستا يوال
په ورځو، شپو، مياشتو کال     له ما اتل نسته

**۲ _ د کسي غر**: د پښتنو په لرغونو سيمو کې يوه ډېره مشهوره او تاريخي سيمه د سلېمان د غرونو لمنې دي چې پښتانه له ډېرې لرغونې زمانې څخه د دغه غرونو په لمنو کې ژوند کوي. دغه د سلېمان غرونه په ځينو کتابونو او تاريخي اثـــارو کې د کسي غره په نامه هم راغلی دی، ځکه د ډېرې لرغونې زمانې څخه د کسي غره په لمنو کې پښتانه مېـــشت و، نـــو دوی ځانته فرهنګي نومونه او ادبيات هم درلودل او دغه غر په خپله ارته او پراخه لمنه کې ډېر ستر ستر اديبان وروزل او د پښتو ادب يوه لويه او بهانده چينه د همدغو غرونو په لمنو کې د مېشتو پښتنو په سيمو کې شتون لري. د پښتو ادبيـــاتو په دوو لرغونو تذکرو، تذکرة الاولياء او پټه خزانه کې د کسي غره په لمنو کې د ځينو اوسېدونکو پښتنو ځينـــې پخـــواني شاعران خوندي دي چې يو شاعر يې هم شيخ بېټنی دی، چې د ژوند زمانه يې د دريمې هجري پېړۍ شاخوا زمانه ټاکـــل کېدای شي.

**۳ _ ملتان**: د تاريخ ليکونکو او د تاريخي کتابونو له ليکنو څخه معلومېږي چې د لومړيو دوو اسلامي پېړيو په شـــاوخوا کې پښتانه په کافي شمېر د سلېمان د غرو لمنو او د پښتونخوا له سيمو د سند او پنجاب سيمو ته ورغلي او مېشت شوي و. ځينې تاريخ ليکونکي په دې عقيده دي چې په لومړيو اسلامي پېړيو کې په سند او ملتان کې د اســـلامي حکمتونـــو د ټينګښت يو دليل په هغو سيمو کې د پښتنو شتون وو. د پنجاب او سند سيمو ته کډه شوي پـــښتانه د خپـــل زړورتيـــا او نرينتوب له پلوه په سيمه کې د راجاګانو او سيمه ييزو حکومتونو د پاملرنې وړ و. له همدې امله د پنجاب پـــه لويـــديځو

برخو او ملتان کې له اوسېدونکو پښتنو څخه شیخ حمید لودي د ۳۷۰هـ. کال په شاوخوا کې د لاهـور او پنجـاب د راجاګانو له خوا له ملتان څخه نیولې تر لغمان پورې د پرتو شاوخوا سیمو واکمن ټاکل شوی و. له شیخ حمیـد څخـه وروسته د ده زوی نصر لودي او بیا یې لمسي داود د ملتان د لودي کورنۍ واکمنان وو او د کورنۍ پـاتې کـسان یـې تر۴۳۲هـ. کال پورې هلته و.

**ریګویدا**: د اریایانو یو مذهبي کتاب دی، په دې کتاب کې مذهبي سرودونه راغلي دي.

**اویستا**: د زردشتیانو سپېڅلی کتاب دی چې څو برخې لري: ګاتا د اویستا یوه برخه ده چې پر سـرودونو مـشتمله ده. اویستا (د مذهبي تکالیفو جونګ) وندیداد (د بد عملو خلکو ضد قوانین) خرد او ستا (مخصوصې دعاوې) ځینـې نـورې برخې هم لري.

چنګېز: د چنګېز اصلي نوم تیموچین په ۱۱۶۲ هجری قمری کال کې زېږېدلی دی، د یسوکا زوی دی

تېمور: تېمورد ترغائی زوی دی، په ۱۳۳۳ هجري قمري کال کې نړۍ ته یې سترګې وغړولې، په اصل کې ترکی دی.

**نادر افشار**: د نادر افشار اصلي نوم نادر قلي و، د امام قلي زوی د ۱۶۸۸ کال په خراسان کـې پیـدا شـوی او پـه ۱۷۴۷ کال کې وفات شوی.

**شیخ اسعد سوري**: شیخ اسعد سوري د محمد زوی و، چې په ۴۲۵هـ. کال په بغنین کې مړ شوی دی. شیخ اسـعد سوري په پښتو ژبه ډېر ښه او پاخه اشعار ویل، دده ښکلې قصیده چې دامیر محمد سوري په مړینې یې ویلې د پـښتوژبې لومړنۍتحریري قصیده (بوللـه)ده.

**ښکارندوی**: ښکارندوی غوري د غور و، پلار یې احمد نومېده چې د غور د فیروز کوه ګوتوال و. ښکارندوی د پـښتو ژبې یو پوخ شاعر او عالم سړی و، نوموړي کله په غزني او کله په بست کې هم ژوند کاوه.

**ملکیار غرشین**: ملیکار غرشین، د بابا هوتک زوی و، د پلار له مړینې څخه وروسته یې د قوم د مشر تابه پګړۍ په سـر کړله. نوموړی ډېر غښتلی سړی و، په جګړو کې به له څو تنو سره جنګېده، دغه پښتون بابا هم په پښتو ډېر خونـدور او پاخه شعرونه لري.

**شیخ تیمن**: شیخ تیمن د شیخ کاکړ زوی و، په غور کې اوسېده. شیخ تیمن په پښتو ژبه کې ډېر پاخه اشعار ویلـي دي. نوموړی یو زاهد عالم او ولي سړی و. شیخ تیمن د علاوالدین حسین سام په زمانه کې وفات شوی دی.

**شیخ متي**: شیخ متي د عباس زوی و، عباس د عمر زوی او عمر د خلیل زوی، خلیل د غوریـا، غوریـا د کنـد ابـن خرښبون زوی و چې د حضرت سړبني قدس الله له زامنو څخه و. شیخ متي قدس الله په کال ۶۲۳ هجري کې زېږېـدلی دی د ۶۵ کلو په عمر د ترنک پر غاړه وفات شوی دی. نوموړی په پښتو ژبه ډېر پاخه اشعار لري. دغه یو زاهد او پرهېز ګاره سړی و.

**لرغوني پښتانه**: دغه کتاب د شیخ ګته یو ډېر له ارزښته ډک کتاب دی.

**شیخ رضي لودي**: شیخ رضي لودي د شیخ حمید لودي وراره دی، کله چې شیخ حمید لودي په ملتان کې پاچا شـو، نو شیخ رضي لودي یې پښتونخوا ته ولېږه چې د هغه ځای خلک د اسلام دین ته دعوت کړي. شیخ رضي لودي دوه کاله د کسي په غرو کې وګرځېد او هلته یې ډېر خلک مسلمانان کړل.

**اخځلیکونه**


ــ حبیبي، عبدالحی د پښتو ادبیاتو تاریخ.

ــ هېوادمل، سرڅېړونکی، زلمی، د پښتو ادبیاتو تاریخ، لومړی ټوک، ۱۳۷۰ لمریز کال.

## اتلسم لوست

**د تدريس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه**

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| **د لوست موضوع** | د لويو جرګو تاريخچه | |
| **د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې** | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ لويه جرګه به وپېژني.<br>ـ د لويو جرګو په معنا او مفهوم باندې به پوه شي.<br>ـ متن به په سمه او روانه توګه ولوستلای شي.<br>ـ په متن کې به ستونزمنې کلمې معنا او وليکلای شي.<br>ـ په متن کې به د څو لويو جرګو د بېلګو په اړه به خبرې وکړای شي.<br>ـ د متن مفهوم او لنډيز به په خپله ژبه وويلای شي.<br>ـ د جرګو د ارزښت په اړه به نورو ته معلومات ورکړی شي. | |
| **د تدريس لارې** | لوستل، ليکل، پوښتنې او ځوابونه، يو کسيز کار ډله ييز کار او خبرې کول | |
| **د تدريس وسيلې او مرستندوی توکي** | درسي کتابونه، قلم، کتابچه، توره تخته، تخته پاک او د کلمو ليکل شوي چارټونه. | |
| **د ارزونې لارې** | شفاهي ارزونه، تحريري ارزونه، د څارنې په وسيله ارزونه او د يادداشت کتابچه. | |
| **د زده کړې او تدريس فعاليتونه** | سلام او ستړي مه شي، حاضري اخيستل، د کورنۍ دندې کتنه او د تېر لوست څخه يادونه | ۴ دقيقې |
| **د انګېزې رامنځته کول** | ښوونکی دې لوست په لاندې هڅوونکو پوښتنو پيل کړي او هم کولای شي چې دې ته ورته نورې پوښتنې هم له زده کوونکو څخه وکړي.<br>ـ تاسې خپلې لانجې څه ډول اواروئ؟<br>ـ ستاسې په نظر د لويو جرګو د جوړېدو اړتيا په کومو حالاتو کې رامنځته کېږي؟<br>ـ کله مو د خفګان په وخت کې له چا سره جرګه کړې ده؟ | ۶ دقيقې |

| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
|---|---|---|
| ـ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه د تير لوست د مطلب او مفهوم په اړه پو ښتنې وکړي.<br>ـ ښوونکی دې متن په مناسب غږ ولولي او په متن کې دې د ستونزمنو کلمو تلفظ سم ادا کړي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکي وګماري چې متن له ځان سره په چوپه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې دې په نښه کړي. | ـ زده کوونکي د ښوونکی له لارښوونې سره سم د لوست مطلب په خپله ژبه بيانوي.<br>ـ زده کوونکي متن ته په غور سره ګوري او ښه غوږ ورته نيسي.<br>ـ زده کوونکي د لارښوونې سره سم متن په چوپه خوله لولي او ستونزمنې کلمې په خپلو کتابچو کې ليکي. | |

| | |
|---|---|
| ـ ښوونکی دې په نښه شوې ستونزمنې کلمې د تختې په مخ ولیکي او له زده کوونکو څخه دې سمه معنا وپوښتي، د نه پوهېدو په صورت کې دې پوره او لازمه مرسته ورسره وکړي. | ـ زده کوونکي د کلمو لیکلو ته پاملرنه کوي او د کلمو په معنا کولو کې ونډه اخلي. |
| ـ ښوونکی دې له ځو تنو زده کوونکو څخه غوښتنه وکړي چې دمتن یو یو پراګراف په سم او مناسب اواز سره ولولي، جملې او کلمې دې سمې تلفظ کړي، خو هغه زده کوونکي چې په لوستلو کې ستونزې لري مرسته دې ورسره وشي. | ـ زده کوونکي د ښوونکي په لارښوونه د متن یویو پارګراف لولي او خپلې ستونزې له منځه وړي. |
| ـ ښوونکی دې ځو زده کوونکو ته بلنه ورکړي چې په خپل وار د ټولګي مخې ته راشي او د خپلې سیمې په جرګو نورو ټولګیوالو ته خبرې وکړي. | ـ زده کوونکي په خپل وار سره د ټولګي مخې ته راځي او د خپلې سیمې د جرګړ په اړه معلومات ورکوي نور ورته غوږ نیسي. |
| ـ ښوونکی دې له ځو تنو زده کوونکو څخه وغواړي، چې د ټولګي مخې ته راشي او د متن مفهوم دې په خپله ژبه نورو ټولګیوالو ته ووايي، د اړتیا پر مهال دې ښوونکی لازمه مرسته ورسره وکړي. | ـ ځو زده کوونکي په وار سره د متن مفهوم په خپله ژبه وايي او ښوونکی ورسره مرسته کوي. |
| ـ ښوونکی دې په ځو زده کوونکو د متن ځو کرښې د تختې په مخ د املاء په ډول ولیکي او د نیمګړتیا په صورت کې دې ورسره لازمه ورروسته وکړي. | ـ زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم د املاء لیکل ترسره کوي. |
| ـ ښوونکی دې د جرګو د ارزښت او اړتیا په اړه له زده کوونکو سره خبرې وکړي او دوی دې د جرګو په ګټو وپوهوي. | ـ زده کوونکي د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي او د جرګو په اړه معلومات ترلاسه کوي. |
| ـ ښوونکی دې د لوست لنډيز له زده کوونکو څخه په لنډه توګه واوري او خپل لوست دې وارزوي. | ـ زده کوونکي د لوست لنډيز وايي او خپله وړتیا ښيي. |
| ـ ښوونکی دې د تختې په مخ ځو د قید کلمې او ځو صفتونه ولیکي او له زده کوونکو څخه دې وغواړي چې یوه ډله صفتونه او بله ډله دې قیدونه سره بېل کړي،او هره ډله دې صفتونه او قیدونه په جملوکې وکاروي او په تختې دې ولیکی. | ـ زده کوونکي په خپلو ډلو کې د قیدونو او صفتونو په اړه په ډله ییزه توګه مشوره کوي او بیا صفتونه او قیدونه په جملو کې کاروي او پر تختې یې لیکی. |
| ـ ښوونکی دې د پښتو لوست په لومړي او دویم درسي ساعت کې په خپله خوښه زده کوونکو ته کورنۍ دنده ورکړي او په دریمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده ورته وسپاري او په بله ورځ دې وګوري. | ـ زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع له ځان سره لیکي او په کور کې پرې کار کوي. |

د متن د ستونزمنو برخو روښانول

_ **میرویس نیکه**: د ښالم خان زوی و. مور یې نازو انا وه. د زېږېدو کال یې ۱۰۸۴ هجری قمری په (۱۶۷۳ میلادی کال اټکل شوی دی. نوموړي د پردیو له واک څخه د خپلې خاورې د ژغورلو لپاره مبارزه پیل کړه او د افغانستان په یوه برخه کې یې خپلواکي ترلاسه کړه. په (۱۷۱۸میلادی.) کال کې وفات شوی او د کندهار د کوکران په سیمه کې ښخ شوی دی.

_ **امان الله خان**: د امیر حبیب الله خان زوی و، په (۱۲۷۰ل) د پغمان په زرګر دره کې زېږېدلی دی. د خپل پلار حبیب الله خان تر مړینې وروسته د افغانستان واکمن تېر شوی. نوموړی ادبپالونکی، خپلواکي غوښتونکی پاچا و. نوموړي د خپلې پاچاهۍ له اعلان سره سم د افغانستان بشپړه خپلواکي اعلان کړه، چې انګرېزانو هم تر ناکامې جګړې وروسته د (۱۲۹۸ل.) کال د زمري په ۲۸ نېټه ( ۱۹۱۹ زکال) د افغانستان بشپړه خپلواکي ومنله.

_ **احمدشاه بابا**: د زمان خان زوی، مور یې زرغونه انا وه. په (۱۱۳۵ق )کال کې زېږېدلی دی. احمدشاه بابا د افغانستان په معاصر تاریخ کې داسې یو واکمن تېر شوی چې د خپل هېواد نوم یې د تل لپاره ژوندی ساتلی، د خپلې خاورې د ساتلو لپاره یې نه هېرېدونکې مبارزې کړې. نوموړی په پنځه ویشت کلنۍ کې د شېرسرخ زیارت په جرګه کې واک ته ورسېده، د غنمو وږی د صابر شاه کابلي لخوا چې یو دینداره شخص و، د نوموړي په لنګۍ کې د شاهي سمبول پر عنوان وټومبل شو په دې توګه احمد شاه بابا واک ته ورسېده.

احمد شاه بابا په ۱۱۸۷ هـ.ق. کال کې تر ۲۶ کالو پاچاهۍ وروسته د (۵۰) کالو په عمر په کندهار کې مړ شوی او هلته خاورو ته سپارل شوی.

_ **اریایان**: هغه وګړي وو چې له میلاد څخه (۲۵۰۰) کاله وړاندې د امو سیند له هاخوا څخه د نفوس د ډېروالي او د ځای او د څړ ځایونو د کمښت له امله د بخدي (اوسنی بلخ) شاوخواځمکوته ته راوکوچېدل، د هندوکش په دواړو غاړو کې مېشت شول او په دې هېواد کې یې د دولت بنسټ کېښود.

_ **امیر شېرعلي خان**: د امیر دوست محمد خان زوی دی، د افغانستان په معاصر تاریخ کې واکمن تېر شوی او دوه ځله یې پاچاهي کړې ده، د خپلې واکمنۍ په دوره کې یې د هېواد د پرمختګ او علمي سطحې د لوړولو لپاره ډېرې هڅې کړې دي او د پښتو ژبې ودې ته یې ځانګړې پاملرنه درلوده. د امیر شېرعلي خان د واکمنۍ په وخت کې لومړی ځل له هند څخه د چاپ ډېرین ماشینونه راوړل شول. د کتابونو، جریدو او دولتي پاڼو او له دې جملې څخه د شمس النهار جریدې په خپرولو لاس پورې شو، حربي فابریکه جوړه شوه، ټول عسکري اصطلاحات او القاب یې په پښتو ونومول.

اضافي معلومات

**جرګه**:

جرګه د پښتنو لرغونی دود دی، معنا یې د یوه هدف، سلا او مشورې لپاره د څو یا ګڼو کسانو راغونډېدل او یوې پرېکړې ته رسېدل دي.

د جرګې اصطلاحي معنا تر دې هم پراخه ده او د افغانانو هغې تاریخي عنعنوي غونډې ته وایي چې د اوږدو زمانو په بهیر کې یې زموږ د ولس ټول ټولنیز، قومي، ملي، سیاسي، اقتصادي، کلتوري تاوتریخوالی او خنډونه له منځه وړي او د غوڅې پرېکړې او تصمیمونو په نیولو سره یې د حل لارې پیداکړې دي.

مرکه تر جرګې وړه غونډه ده، چې د کلي کور واړه موضوعات او شخړې حل کوي او جرګه د لویو او مهمو مسایلو د حل لپاره جوړېږي، کله چې جرګې ته وړاندې کېدونکي موضوع د اهمیت او کیفیت له مخې لویه او پراخه وي، له جرګې سره هم د لویه کلمه زیاتېږي او لویه جرګه یې بولي، زموږ په تاریخ کې د لویې جرګې شمېر زیات دی او په

سلهاوو جرګې شته چې مهمې تاريخي پرېکړې يې کړي او تاريخي ارزښت يې خوندي شوی دی.
د جرګې همدا اهميت او ټولنيز ارزښت دی چې افغاني حکومتونو (خصوصاً تر خپلواکۍ وروسته) لويه جرګه د ملت د ارادې په توګه په رسميت ومنله او د راغوښتولو ټاکلي وختونه يې ورته وټاکل، تر دې چې د ۱۳۴۳ه کال په اساسي قانون کې لويې جرګې ته يو ځانګړی ځپرکی پرانيستل شو، په دې قانون کې پر لويې جرګې سربېره هغو ټولو ادارو ته، چې د ولس له انتخاب او نظر سره تړلې دي، د جرګې بشپړوونکی نوم ورکړ شو، لکه د پارلمان دواړو مجلسونوته يعنې (ولسي جرګه او مشرانو جرګه) نوم ورکړ شو

**د جرګې رابللونکي**

د لويې جرګې د جوړېدو اړتيا له بېلا بېلو عواملوڅخه رازېږېدلې، کله بهرنی يرغل او تېری، کله کورنۍ شخړې او جنګونه، کله د قدرت تشه او کله هم د قانون جوړولو يا د نړيوالو او ملي پېښنو په وړاندې د تصميم نيولو له مخې لويه جرګه راغوښتل کېږي.

د لويې جرګې په راغوښتلو کې ملي تصميم او اراده اساسي بلندويه ده، خو کله چې د بهرني بريد په ترڅ کې د هېواد اداره او واکمني له منځه ځي او د تصميم مرکز ورانېږي، نو بيا مشران او ملي مبارزين له کليو نه راولاړېږي، د تصميم يو عاجل مرکز جوړوي او بيا د دې مرکز په وسيله جرګه راغواړي او د هغې دتصميمونو په رڼا کې مبارزه پرمخ بيايي؛ د نړيوالو پېښنو په وړاندې د تصميم نيونې يا د خلکو د ژوندانه د ښه کولو په غرض د قانون او نظام جوړونې لپاره جوړېدونکې جرګې واکمن حکومت راغواړي او زمينه ورته برابروي، مطلب څنګه چې د حالاتو غوښتنه وي له هغې سره سم د لويې جرګې بولندويه مرجع جوړېږي او بيا لويه جرګه راغواړي.

**د جرګې ګډون کوونکي**

په جرګه کې ګډون کوونکي افراد معمولاً د قومونو او خېلونو مشران وي چې ګډون يې له انفراديت سره سره د جمعيت معنا لري، يعنې دوی ظاهراً يو فردوي، خو بالقوه يو قوم، يو خېل او يو ټولګی وي چې په جرګه کې د ټولو استازيتوب کوي؛ ژبه او ژمنه يې دټولو پرګنو ژبه او ژمنه وي او د هغوی په بشپړ ملاتړ تر سره کېږي، دوی د ولسونو ګوډې ماتې په پوره تدبير جوړوي او ټولنيزې ستونزې له منځه وړلی شي.

جرګې د قرآن د مبارکو آيتونو په تلاوت پرانيستل او په پرېکړو يې دعاګانې کوي او له الله جل جلاله څخه يې بری غواړي، د جرګې يو بل مهم رکن بيا نرخيان او هغه کسان دي چې د جرګې او له هغې سره اړوند ټول ولسي تعاملات ورته معلوم وي او د پرېکړو لپاره د پرېکړې قانوني او حقوقي اړخ روښانوي او په دې برخه کې د تېرو پرېکړو او په ولس کې د معمولونرخونو شکل او ښه مجلس ته وړاندې کوي او بيا پرېکړه پرې کېږي.

کله چې د جرګو دولتي ملاتړ ترلاسه شو، د جرګو په ترکيب کې پر قومي مشرانو سربېره، د دولت لوړ رتبه مامورين او دنورو دولتي ارګانونو پوه کسان او هم هغه کسان چې علمي او اجتماعي مقامونه ولري د دولت له خوا په لويه جرګو کې په انتصابي توګه ټاکل کېږي، نو له دې کبله په ځينې هغو جرګو کې چې د دولت تر سرپرستۍ لاندې راغوښتې شوې وې، د غړو شمېره ډېره لوړه وي.

مثلاً د امان الله خان په لومړۍ جرګه کې ۸۷۲ تنه، په دويمه جرګه کې ۱۰۵۰تنه، دريمه جرګه کې ۱۱۰۰تنه، د نادر خان په جرګه کې ۳۰۱تنه، د ظاهر شاه په لومړۍ جرګه کې ۱۰۰۰ تنه، په دويمه کې ۳۷۱تنه، په دريمه کې ۴۵۲ تنه او د داؤد خان د جمهوريت په لويه جرګه کې ۳۵۲ تنه وو.

د ۱۳۴۳کال په اساسي قانون کې لويې جرګې يو ځانګړی ځپرکی پيدا کړ.

## د جرګې بنه او ټولنځی:

((سبها)) چې د آریایانو کوچنۍ جرګه وه، په هر کلي کې یې یوه خونه ورته ځانګړې کړې وه چې د اړتیا په وخت به دې خوني ته راغونډېدل او ټولو خلکو به بې له خاص امتیازه ګډون پکې کاوه او خپلې شخړې یې پکې فیصله کولې، لـــه دې خونو نه د ځینې لوبو لپاره هم کار اخیستل کېده، ښځو او نرینه و به ګډه غونډه پکې کوله چې د دې جرګو ژوندۍ بڼـــه اوس هم زموږ په قبایلو کې شته او دوی خپلې کلیوالې شخړې پکې فیصله کوي، بیا وروســـته د جرګـــې غونـــډې پـــه جوماتونو او حجرو کې هم کیدلې.

زیاتې جرګې چې ګڼ کسان ورته رابلل شوي وي، په آزاده فضا کې جوړېږي چې د جرګې ګډون کوونکو به بې له حلقه جوړولو او په لږ څه فاصله کې به اورېدونکي هم ورته ناست وو چې د جرګې خبرې او پرېکړې به یې اورېدلې.

د جرګې غړي د سپین ږیرو په نامه یادېږي او مشران هم ورته وایي، هره جرګه یوخاص مشر لري، او نور غړي یـــې پـــه مساوي شرایطو سره کېښني، په جرګه ځای کې چې د جرګې غړي راټولېږي، نو غونډه په دایروي بڼه جـــوړوي چـــې د پورته او ښکته امتیاز پکې رانشي، کله داسې هم کېږي، چې جرګه پټه وي، په دې صـــورت کـــې جرګـــه ســـیلانیان او اورېدونکي نه لري او نه څوک ورنژدې کېدای شي. د جرګې د جوړېدو لپاره هره قبیله جلا ځـــای لـــري او دا ځـــای سپېڅلی وي چې په ځینې ځایونو کې بېرغ هم پرې رپول کېږي، د جرګې ځای سر خلاصی وي او پـــه عمـــومي ډول دا ځای پر ډاک جوړ شوی وي چې د جرګې د ننداړې لپاره د قبیلې ټول خلک د هغه پر شا او خوا راټولېږي.

## د جرګې د پرېکړو عملي کېدل

د جرګو پرېکړې کله چې په ځانګړې کتاب یاداسنادو د ثبت په دفترونو کې ولیکل شی نو د کانې د کرښې حیثیت لري. او عملي کول یې حتمي او لازمي دي، له همدې کبله د هېواد په ډېرو برخو کې له عمرونو راهیسې خلکو خپلې شـــخړې د ولسوالۍ پر ځای د ولس اصلاحي جرګو ته رسولې او بې له رشوت څخه یې داسې پرېکړې ترلاسه کـــولې چـــې دواړو اړخونو ته به د منلو وړ وې.

د اصلاحي جرګو پرېکړې تر دې حده معتبرې وې چې زموږ په هېواد کې به د شرعي محکمو قاضیانو چې کومه شـــخړه فیصله نه کړای شوه، نو مدعیانو ته به یې ویل چې اصلاحي جرګې ته سره کېني او خپله شخړه فیصله کړي او دا پرېکـــړه به دومره معتبره وه چې دوی به د خپلو رسمي پرېکړو په کتاب کې درجوله او په دې توګه به یې د شخړې دوسیه تړله نو دا ښیي چې په ولسي تعاملاتو ولاړې پرېکړې ډېرې عادلانه او د خلکو لپاره د منلو وړ وې د مسایلو په تحلیـــل کـــې د جرګې د بڼه والي یوبل مهم دلیل دا هم دی چې جرګه د ډېرو غړو د افکارو له یو ځای کېدو څخه جوړېږي چې عمـــومي قضاوت پراخ او هر اړخیز نظر لري اود شخړو او لانجو په هوارولو او فیصله کولو کې نه تېروځي.

په نړیواله سطحه هم دومره ارزښتمنه ده چې نړیوال حقوق پوهان عقیده څرګندوي چې د هر ولس او ملت د قوانینو پـــه تدوین کې باید د دوی کلتور، دودونه او عنعنې په نظر کې ونیول شي.

جرګه د افغانیت او ملي عنعنې یوه بنسټیزه برخه ده چې خوشحال خان بابا یې اهمیت داسې بیانوي

بې جرګې نه به هېڅ کار په لاس وانخلې          که خبر وي د جرګې په برکت

**اخځلیکونه**

ـ رفیع حبیب الله، ملي کرښه

ـ سیدمحی الدین هاشمي د افغانستان مشاهیر

# نولسم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | په پښتوادب کې لنډه کیسه | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې لاندې موخې ترلاسه کړي<br>ـ په پښتو ادب کې به لنډه کیسه وپېژني.<br>ـ د لنډې کیسې په معنا او مفهوم به پوه شي.<br>ـ متن به په سمه او روانه توګه ولوستلای شي.<br>ـ په متن کې به ستونزمنې کلمې معنا او ولیکلای شي.<br>ـ د متن مفهوم او لنډیز به په خپله ژبه وویلای شي.<br>ـ د لنډې کیسې له لیکلو سره به یې مینه پیدا شي او د کیسو له پایلو څخه د ژوند په چارو کې عبرت واخلي.<br>ـ د متن د پای فعالیتونه به په خپلواکه توګه ترسره کړای شي. | |
| د تدریس لارې | پوښتنې او ځوابونه، یو کسیز کار، ډله ییز کار، لوستل، لیکل او خبرې کول | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | کتاب، قلم، تخته، تخته پاک، تباشیر، مارکر، کتابچه | |
| د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه او د څارنې په وسیله ارزونه | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام، احوال پوښتنه، حاضري اخیستل، د کورنۍ دندې کتنه او د تېر لوست څخه یادونه | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی دې لاندې هڅوونکې پوښتنې له زده کوونکو څخه وپوښتي او هم کولای شي چې دې ته ورته نورې پوښتنې له زده کوونکو څخه وپوښتي.<br>۱ـ کله مو په خپل کور او کلي کې له چا څخه کیسې اورېدلې دي؟<br>۲ـ څوک به د لنډو کیسو د ګټو او ارزښت په باب خبرې وکړای شي؟ | ٦ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| ـ ښوونکی د ې څو تنه زده کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي او ترې ودې غواړې چې د تېرې ورځې د لوست مهم ټکي په تختې ولیکي.<br>ـ ښوونکی دې متن په لوړاو مناسب اواز ولولي او په متن کې راغلې ستونزمنې کلمې او الفاظ دې معنا کړي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې متن له ځانه سره په چوپه خوله ولولي او په مفهوم دې ښه ځانونه وپوهوي خپله ښوونکی دې ورڅخه ښه څارنه وکړي. | ـڅوتنه زده کوونکي د لوست مهم ټکي د تختې پر مخ لیکي.<br>ـ زده کوونکي متن ته ګوري ښه غوږ ورته نیسي او د کلمو او الفاظو په معنا ځانونه پوهوي.<br>ـ زده کوونکي متن له ځان سره لولي او په مفهوم یې ځانونه پوهوي. | |

| | |
|---|---|
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه د متن مفهوم وپوښتي او د هغوی د نه پوهېدو په صورت کې دې ورسره خپله هم لازمه مرسته وکړي. | ـ زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم عمل کوي او د متن مفهوم پخپله ژبه وايي. |
| ـ ښوونکې دې زده کوونکي په دوو مناسبو ډلو وويشي، يوه ډله دې په متن کې راغلي د کتابونو نومونه له بلې ډلې څخه وپوښتي او نومورې ډله به ځوابونه ووايي او بيا دې ځواب ورکوونکې ډله په متن کې راغلي د اشخاصو نومونه وپوښتي او دويمه ډله دې سم ځوابونه ورکړي، خپله ښوونکی دې هم د اشخاصو او کتابونو د نومونو په اخيستو کې ورسره مرسته وکړي. | – زده کوونکي ډله ييز فعاليت د پوښتنې او ځواب په بڼه کاروي. |
| – ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه وغواړي که کومه لنډه کيسه يې زده وي نوروته دې ووايي. | – څو زده کوونکي په وار سره يوه په زړه پورې کيسه چې زده يې وي نورو ټولګيوالوته يې اوروي. |
| ـ ښوونکې دې څو تنه زده کوونکي په خپله خوښه د ټولګي مخې ته راوغواړي چې په پښتو ادب کې د لنډې کيسې د ليکلو په اړه نورو ته خپل معلومات وړاندې کړي. | ـ څو تنه زده کوونکي د ټولګي مخې ته راځي او د لنډې کيسې په اړه په خپله ژبه نورو ټولګيوالو ته معلومات وړاندې کوي. |
| ـ ښوونکې دې څو تنه زده کوونکي په وار سره د تختې مخې ته راوغواړي او د لوستل شوي متن يوه يوه برخه دې د املا په ډول په تختې وليکي، خپله ښوونکی دې هم ورسره مرسته وکړي. | ـ څو تنه زده کوونکي د تختې مخې ته راځي، د متن يوه يوه برخه د املا په توګه ليکي او د اړتيا پر مهال له ښوونکي څخه مرسته غواړي. |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې د لوست لنډيز په خپله ژبه ووايي. | ـ زده کوونکي په خپل وار سره د لوست لنډيز بيانوي. |
| ـ ښوونکې دې زده کوونکو ته په لومړي او دويم درسي ساعت کې په خپله خوښه او په دريمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده وروسپاري او په بله ورځ دې وګوري. | ـ زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع ګانې ليکي او په کورونو کې يې بشپړوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

ـ **سيد راحت زاخيلی:** د سيد فريح الله زوی، په **۱۳۰۳**هـ.ق. کال د نوښار په زاخېلو کې زېږېدلی دی، نوموړی تکړه شاعر او ليکوال و. د ژباړې په هنر کې هم د لوی لاس خاوند و. په ناول او لنډه کيسه کې يې ډېر شهرت درلود. د پښتو د لومړني پښتو اخبار ((افغان)) د ده په اهتمام راوتلی دی. ده ډېرې لنډې کيسې او کتابونه، لکه کونډه نجلۍ، شلېدلې پېه(کيسې) تاريخ افغانستان، ماه رخ (ناول) لغات افغاني، د حضرت علي كرم الله وجههُ اقوال، د زړه درد پښتوافسانې او نور ډېر کتابونه ليکلي. په **۱۳۸۳**هـ.ق. کال کې يې له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې دي.

ـ **عبدالقدوس پرهېز:** د شمس الدين قلعټکي زوی، په **۱۲۹۶**هـ.ل. کال د ننګرهار ولايت د شفيع کوټ ((قلعټک)) په کلي کې د غور د ملکانو په کورنۍ کې زېږېدلی دی.
هېواد ته د خدمت لپاره يې ښلا ښلې دندې ترسره کړې، نوموړی د پښتو ژبې ښه ليکوال او شاعر و. کله ناکله يې په

دري ژبه هم ليکنې کړي دي. ليکنې او اشعار يې د هېواد په ورځپاڼو مجلو، او جريدو کې خپاره شوي. د افسانو ليکلــو سره يې مينه لرله، ده دري افسانې ((د ټوکو مينه، ښاپيرۍ او ترون)) چې د انيس په ورځپاڼو کې چاپ شوي دي ليکــې دي، نور آثار يې دا دي:
د پوهانو افکار، د زړه بخري، ادبي ليکنې، فرزانه صالح او ......

ـ **سراج الدين سعيد:** د ملا منهاج الدين زوی، په خټه شينواری په ۱۲۷۸ش. کال د کابل په ښار کې زېږېدلی دی. تکړه ليکوال و، په عربي، دري، اردو، ترکي او پښتو ژبو ښه پوهېده، په پښتو او دري ژبوکې د ښه قلم خاوند و. ځينې مقــالې يې د کابل په مجلې او نورو ورځپاڼو کې خپرې شوې، بېلا بېلې دندې يې ترسره کړي دي.
ده په پښتو ژبه د افسانو يوه ټولګه ليکلې، په دري ژبه يې هم دوه کتابونه ليکلي د (شخصيت) په نوم يــې يــوه اجتمــاعي رســاله ليکلې چې د کابل په سالنامه کې خپره شوې. ښاغلي سعيد په ۱۳۴۲ل. کال له دې نړۍ څخه سترګې پټې کړې دي.

ـ **ميراجان سيال:** د حاجي مياجان زوی، په ۱۲۸۹ل. کال د مومندو په کوډاخېلو کې زېږېدلی دی، تکــړه شــاعر او ليکوال و. سيال په پارسي، اردو، عربي او پښتو ژبو پوهېده، ده په کوډاخېلو کې د (مومند) په نامه يــو ه ورځپــاڼه هــم راايستلې وه، دی ښه ويناند هم و، ليکلي کتابونه يې دا دي:
غازي پښتون، د روژې فلسفه، د پښتونخوا افسانې، د مينې شهيدان، د پښتنو قبيلې او شجرې، ايمل خان، په پښتو پــردو څه کړي دي، د غزلونو ديوان، خوږه مرکه، مومند بابا.

ـ **عبدالحی حبيبي:** د پښتو ژبې په معاصر ادب کې يو مسلکي او پوخ ليکوال تېر شوی دی، هغه نه يوازې په پښتو ژبه بلکــې پــه اردو، دري، او انګليسي ژبو هم ښه پوهېده. په پښتو او دري دواړو ژبو کې غوره او پاخه اثــار او اشــعار لــري. ده ډېــر علمــي، څېړنيز او تاريخي اثار ليکلي او د استادۍ لوړې درجې ته رسېدلی. په افغانستان کــې د لنــډې کيــسې لــومړنی ليکــوال دی پــه ۱۳۲۸هــ. کال د ربيع الثاني په ۱۷ د کندهار ښار د باميزو په کوڅه کې زېږېدلی دی او په خټه کاکړ دی.
د ده مهم اثار
پښتو پښتونواله، سپېڅلې پښتو، پښتانه شعراء، د پښتو ادبياتو تاريخ او ډېر نور.

اضافي معلومات

## د لنډې کيسې پېژندنه:

لنډه کيسه چې په انګليسي کې يې شارټ سټوري بولي د نړۍ په کچه پېژندل شوي ليکوال (اډګرالن پو) د لومړي ځــل لپاره داسې تعريف کړه.
(لنډه کيسه، هغه نثري داستان وي چې په لوستلو يې له نيم ساعت نه لږ وخت لګيږي او کله دا وخت دوه ساعتونو ته هم رسيدلی شي)
خو يو شمېر ليکوال بيا داسې وايي: لنډه کيسه هغه ده چې په هغه کې مرکزي پېښه د لمر په شان حيثيت لري او نــورې پېښې د ستورو په شان د هغه په خواوشا ګرځي او په هغې پورې تړلې وي چې په اصل کې ټول يوه منظومه جوړوي).
او هيلډيسن وايي: د لنډې کيسې لپاره لنډوالی يوازينی شرط نه دی، بلکې د دې تر څنګ ځينې نورې ځانګړتياوې هــم لري او هغه دا چې د کيسې موضوع د خپلو حدودو په چوکاټ کې رانغاړي. بې ځايه او بې اړتيا خبرې په کې نه ځايږي، تاثر او اغيز يوالی په کې يوازينی شرط دی.
خو يو تعريف(پېژندنه) چې ډېرو ليکوالو منلی هغه دا دی چې: (لنډه کيسه يو لنډ نثري اثر دی چې په هغه کې ليکوال د

يوې منظمې طرحې په مرسته يو اصلي شخصيت په يوې اصلي پېښه کې په ګوته کوي او اثر په ټوليز ډول يو ځانګړی تاثير ښندي.
د لنډې کيسې اصطلاح د لويديځ ادب د (شارټ ستوري) سره هم معنا ده او معمولاً د هغه نثري داستان لپاره استعماليږي چې له ناول څخه لنډ وي.
لنډې کيسې په اوسني مفهوم او فني بڼه په نولسمه پيړۍ په اروپا کې منځ ته راغلې او له هغه ځايه يې د نورې نړۍ ادبياتو ته لاره موندلې ده. دغه نثري ادبي ډول له انګرېزي ژبې څخه اردو او بيا له هغې نه د شلمې پيړۍ په لومړيو کې پښتو ادب ته راغلې دی لومړنی پښتون ليکوال چې په دغه ډګر کې يې خپل قلمي ځواک ازمويلی مرحوم سيد راحت زاخيلی دی چې د (کونډې نجلۍ) په نوم يې يوه لنډه کيسه ليکلې ده.
لنډه کيسه د اوسني پر مختللي عصر زېږنده ده، څومره چې بشري ټولنې له يوې ورځې څخه بلې ته په ذهني او مادي لحاظ د پرمختګ پړاوونه وهلي په هماغه اندازه د انسانانو ضرورتونه او مصروفيتونه هم زيات شوي دي. پروني انسان چې ډېر وزګار وختونه يې لرل او حتا شپې شپې يې د مينې او محبت په روماني او د جنګونو او ننګونو په حماسي او د ښاپيريانو او دېوانو په خيالي او موهومي اوږدو اوږدو کيسو په لوستلو او اورېدلو سبا کولې او له هغو څخه يې خوندونه، پندونه انتباه اخيستله.
خو د اوسني عصر انسان د ډېرو مصروفيتونو له امله دا کار نشو کولی، مګر دا چې د کيسو او پېښو اورېدنه، لوستنه او پرې ځان پوهونه د انساني ذهن فطري غوښتنه ده او د روحي تسکين لپاره همېشه د يوې مهمې اړتيا له مخې د وخت په تېرېدو او د حالاتو په بدلېدو اوږدو اوږدو کيسو او داستانونو د اوسنۍ لنډې کيسې بڼه خپله کړه. دا چې اوس د اوږدو کيسو پر ځای لنډه کيسه خلکو ته ډېره منلې ده. ستر علت يې لنډون او د وخت د ضياع مخنيوی دی، ځکه چې لوستونکی يې په لږ وخت يعني په يوه نا سته کې هم لوستلی يا اورېدلی شي او د پند او انتباه دنده په ډېره اسانه توګه سرته رسولی شي.
د لنډې کيسې موضوعات.
په اوسني مفهوم او بڼه د لنډې کيسې د رامنځ ته کېدو په لومړيو وختونو کې به لنډه کيسه معمولاً يوه کرداري کيسه وه چې به د يوځانګړي کردار يا کرکټر په شاوخوا به چورلېده. په دې ډول کيسو کې به د چاپېريال عکاسي او منظر کشي هم وه . هغه به ډېره تته او په نشت شمېر وه. يا به د واقعي او د څه پېښې کيسه وه، په دې ډول کيسو کې به په ضمني توګه کردار او چاپېريال هم و، خو ليکوال به ډېر زور د پېښې او واقعې په روښانولو اچولو او هغه به يې دکيسې اصلي موضوع ګرځولې وه. يا به چاپېريالي کيسه وه، د چاپېريال ژوره عکاسي به په کې کېدله پېښه او کرکټر به په کې ضمني و. اوس د لنډې کيسې د موضوعاتو لمن ډېره پراخه شوې ده او ټول هغه څه چې انسان ورسره په بشري ټولنه کې په يوه او بله بڼه مخامخ او په انساني ژوند پورې اړه لري، انسان يې د خپلې پوهې او عقل په مرسته د درک او احساس ځواک لري اود لنډې کيسې موضوع ګرځېدای شي او لنډه کيسه پرې ليکل کېدای شي.

**د لنډې کيسې د جوړښت بنسټيز توکي**

– د لنډې کيسې په چوکاټ يا بنسټيز جوړښت کې دا لاندې برخې شاملې دي.

**۱_ اډانه _ پلاټ (طرحه)**: اډانه په کيسه کې هغې برخې ته وايي چې کيسه پرې راڅرخي، يو بهرنی ليکوال چې m فوسټر نوميږي وايي: (اډانه د کيسې د شمزۍ) حيثيت لري د پلاټ ګټه دا ده چې کيسه بې نظمۍ ته نه پرېږدي او د همدغې اډانې په وسيله کيسه ليکوال کولی شي خپله موخه په کيسه کې په داسې مهارت واوري چې د لوستونکي پاملرنه ځانته جلب کړي. د اډانې په وسيله کيسه ليکوال ټول هغه داخلي احساسات، عواطف، رواني، فلسفي او منطقي ليدلوری

چې له مودو راهیسې یې په ذهن کې ګرځي راګرځي کولای شي څرګند کړي.
اړانه باید ډېر واقعیت ته نژدې وي، ځکه پورته موږ وویل چې د شمزۍ حیثیت لري او کله چې شمزۍ غلطه وي، نو تـــر پایه همداسې غلطي پېښیږي.
د پښتو ژبې معاصر لیکوال سید محی الدین هاشمي په دې عقیده دی چې: (دا خبره ضروري نده کومه پیښه چې په لنـــډه کیسه کې بیان شوي وي خامخا به پیښه شوي وي) خو وروسته بیرته ټینګار کوي چې (باید داسې هم نه وي چـــې پـــه کیسه کې راغلې پیښې له شونتیا څخه لرې وي.)
د لنډې کیسې اړانه ډېر ډولونه لري چې د ساده او پیچلي نه نیولې تر ترکیبي پورې رسېږي. څومره چې اړانه یـــا پـــلاټ ساده او هنري وي هماغومره کیسه په زړه پورې او خوندوره وي.
په اړانه کې وحدت او تسلسل حتمي او ضروري خبره ده، ځکه په اړانه کې هره یوه برخه لکه کړنه، پیښه او ان طنز لـــه خپلې زاویې څخه لیدل کېږي. او همدا زاویې لامل کېږي چې کیسه یو ډول خوند پیدا او بې له دې کیدون نه لري.

**۲_ کرکټر یا د کیسې اتل**:

هغه څوک دی چې په خپلو کړنو او ویناوو کې پیښه او کیسه رامنځته کوي. دا کرکټر له ســـتونزو او خنـــډونو ســـره د مقابلې او مجادلې په ډګر کې له بېلابېلو حالتونو او پړاوونو سره مخامخ کېږي، غورځي، پرځي ،خو په خپل ټـــول وس او ځواک د هدف په لور له وړاندې تک څخه لاس نه اخلي.
د یوې لنډې کیسې په پیښه کې کېدای شي له یوه څخه زیات کرکټرونه راڅرګند شي، خو مرکزي کرکټر یکې هغـــه وي چې د پیښې جزئیات په مجموع کې د هغه په شاوخوا څرخي. دا مرکزي کرکټر د پیښې جزئیـــات ورو، ورو را برســـیره کوي او بیا یوې پایلې ته رسېږي.

**۳_ تلوسه یا غوټه** (سسپنس): تلوسه یا غوټه په کیسه کې هغه اساسي توکی دی چې بې له دې موږ نشو کولی یـــوې لنډې کیسې ته کیسه ووایو، ځکه د نورو ادبي او څېړنیزو لیکنو توپیر هم د لنډې کیسې سره په همدې کې دی. تلوسه د کیسې هغه مهارت دی چې لوستونکی په عین وخت په لوستلو کې د یو ډول ویرې، شک او وسواس سره مـــخ کـــوي او داسې ذهني ناارامتیا کې راګیر کېږي چې د یو ډول ناکرارۍ احساس کوي او اړ کېږي چې د خپل ذهني تسکین په موخه کیسه تر پایه ولولي. که چیرې نوموړی بریالی نشي چې کیسه تر پایه ولولي نو تل به ورته یو شمېر پوښتنې بې ځوابه پـــاتې وي. لکه ولې؟ څنګه، څه وشول؟ چا وکړل؟ څنګه به کېږي؟ او داسې نور...
تکړه او غبنتلی.
د لنډې کیسې لیکوال هغه څوک دی چې دغه تلوسه تر پایه همداسې وساتي او لوستونکي ته په سلګونو پوښـــتنې پیـــدا کړي چې د اوریدو په موخه یې اړ شي او ویې لولې.

**۴_ صحنه**: ځای، مهال، پیښې، تصادف، څېرې او نورو ځانګړنو څخه عبارت دی چې کیسه په کې پیښیږي.
صحنه، په کیسه کې ډېر مهم او ارزښتناک رول لري، ځکه صحنه ده چې د اتل په ژوند کې یو ژور بدلون راولي

**۵_ خبرې اترې، مکالمې (ډیالوګ) او منظر کښي**: خبرې اترې یا مکالمې د کیسې هغه په زړه پورې برخـــه ده چې کیسې ته یو ځانګړی خوند وربښي او کیسه د څوکې یا اوج ټکي ته رسوي.
په خبرو اترو کې د لنډې کیسې لیکوال اړ دی چې د هرې سیمې ګړدود (لهجې) وپیژني او خبـــرې تـــه هماغـــه لهجـــه ورکړي او د خبرو اترو په وخت کې یې په جدي توګه په پام کې ونیسي.
څومره چې ډیالوګ ساده وي هماغومره قوي او په زړه پورې وي. یوه خبره باید په یاد ولرو چې د لنډې کیسې او نـــاول

خبرې اترې خورا ډېر توپير سره لري. د ناول ډيالوګ ډېر اوږد او ډېرې پيښې په کې ځرګنديږي. خو د لنډې کيسې خبرې اترې شمارلې او پوره معنا لرونکې وي.
ځکه که چېرې ليکوال په لنډه کيسه کې د ډيالوک لړۍ وغځوي او ډېر اوږد اوږد پراګرافونه په کې ځای کړي نو نه يوازې دا چې کيسه بې رنګه کوي بلکې د لنډې کيسې له فورم څخه هم بهرکيږي او يو نوی شکل ځانته غوره کوي. نو په دې توګه په خبرو اترو کې بايد ليکوال ډېر حساس وي. ځکه ډيالوګ د يوې کيسې هنري او ذوقي خواته نغوته کوي.

**۶ـ تخيل (خيال پردازي)**: دنورو هنري او ادبي ليکنو په څېر په لنډه کيسه کې هم له تخيل نه کار اخيستل کيږي. ليکوال د خپل تخيلي ځواک په وسيله د خپل ذهني تخليق پيښې او کردارونه موږ ته په داسې بڼه وړاندې کوي. چې بالکل واقعيت ته نژدې او په ټولنيز ژوند کې د هغسې کېدو امکان موجود وي. په دغه برخه کې د کيسې ليکوال معمولاً د يو روانشناس په څېر خپل خيالي شخصيتونه په خيالي فضا کې مخې ته دروي او د خپلو تخيلاتو او تصوراتو په ملتيا د هغو په اړه څېړنه او مطالعه کوي او له انساني ټولنيز ژوند نه د هغو د افعالو، اعمالو، خصلتونو، احساساتو او جذباتو طبيعي انځور اخلي، خو که په هغه کې ډېر لږ داسې غير طبيعي والی هم څرګند شي چې انساني ذهن په هغسې شان شکمن کړي. کيسه بې اغيزې کوي او د ليکوال په فني خامۍ او ناکامۍ دلالت کوي.

**۷ـ د کيسې پايله**: هره پيښه چې په کيسه کې وړاندې کېږي خامخا به پيل، اوج او پای لري. د کيسې پېښه د کرکټرونو (کردارونو) د مکالمو، اعمالو، افعالو او منظر کشۍ په وسيله ورو ورو پرمخ ځي، نا څرګند اړخونه يې څرګند او اچول شوې غوټې خلاصيږي، تر څو د روان کشمکش وروستي پړاو چې ليکونکی يې نوروته رسول غواړي بشپړ شي.
په دې برخه کې زيات غور په کار دی او د کيسې پايله په داسې ډول وشي چې لوستونکي يا اوريدونکي ته کټ مټ د حقيقت په څېر وبريښي او که لږ مصنوعيت او غير طبيعي والی هم په کې څرګند شي د ټولې کيسې خوند به ورک او خراب کړي.
دلنډې کيسې پايله ليکوالان معمولاً په دوه ډوله ليکي.
۱ـ هغه پايله ده چې ليکوال لوستونکي يا اوريدونکي ځان سره د خيال په وزرو تر اسمانه ورسوي او هم هلته يې پريږدي چې په خپله لوستونکي يا اوريدونکي پرې قضاوت وکړي او يوه د حل لاره ورته پيدا کړي او وروسته پرې خبرې وکړي او بيا پرې قضاوت وکړي.
۲ـ په دويم ډول پايلې کې ليکوال هرڅه تر ډېره حده په روښانتيا سره وايي او د لوستونکي او اوريدونکي ذهني ذکاوت ازمويني ته څه نه پريږدي، خو د ځينو ليکوالو په عقيده د يوې لنډې کيسې ډېره ښه او ناوړه پايله وړاندې کول هغه ده چې کيسه ليکونکی هرڅه په خپله ووايي او لوستونکي سوچ او تفکر ته پرې نه ږدي.

**اخځليکونه**


– هاشمي، محقق سيد محی الدين، د ليکوالۍ فن
– سيدي، سيد نظيم پښتو، لنډه کيسه او ادبي ټوټه
– د پښتو نثر هنداره ليکوال صديق الله رښتين
– دا ليکوال او ځيرې

## شلم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرحه | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|
| | ادبي لیکونه | د لوست موضوع |
| | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي لاندې موخې ترلاسه کړي.<br>ـ متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>ـ د لیک په ډولونو باندې به پوه شي.<br>ـ د متن په ارزښت او مفهوم به خبرې وکولای شي.<br>ـ په متن کې به د نویو لغتونو په معنا پوه شي او په جملو کې به یې وکارولی شي.<br>- دادبي لیکونو په اړه به خپل نظرونه په خبرو کې څرګند کړای شي.<br>ـ د لیک او وینا ورتیا به یې پیاوړې شي.<br>ـ د ادبي لیکونو د ډولونو په هکله به لیکل وکړای شي.<br>ـ د متن د پای فعالیتونه به په یوازې توګه ترسره کړای شي. | د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې |
| | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یو کسیز کار، ډله ییز کار او خبرې کول | د تدریس لارې |
| | قلم، کتابچه، تباشیر، تخته، تخته پاک، د کلمو او الفاظو لیکل شوي چارټونه | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي |
| | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د څارنې په وسیله ارزونه او د یادداشت کتابچه | د ارزونې لارې |
| ۴ دقیقې | سلام او احوال پوښتنه، حاضري اخیستل، د کورنۍ دندې کتنه او د تېر لوست څخه یادونه | د زده کړې او تدریس فعالیتونه |
| ٦ دقیقې | ښوونکی دې لاندې هڅوونکې پوښتنې له زده کوونکو څخه وپوښتي او هم کولای شي چې دې ورته نورې پوښتنې هم له زده کوونکو څخه وپوښتي:<br>ـ کله تاسو خپلو ملګرو یا دوستانو ته لیک لیکلی دی؟<br>ـ د څه شي په واسطه کولای شو چې خپل حال احوال خپلو خپلوانو او دوستانو ته و لېږو؟<br>ـ د ادبي لیک په معنا او مفهوم پوهېږئ؟<br>ـ ستاسو په فکر ادبي لیک له عادي لیک سره څه توپیر لري؟ | د انګېزې رامنځته کول |

| د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ـ زده کوونکي کتابونو ته ګوري، غوږ ورته نیسي، د ښوونکي معلوماتو او د ستونزمنو کلمو معنا ته هم پاملرنه کوي. | | ـ ښوونکي دې متن په لوړ اواز سره ولولي، او د متن په مفهوم دې معلومات وړاندې کړي، ستونزمنې کلمې دې هم معنا کړي. |

| | |
|---|---|
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په خپلو منځو کې متن په چوپه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې يې په نښه کړي. | ـ زده کوونکي په خپلو منځو کې متن په چوپه خوله لولي او ستونزمنې کلمې په نښه کوي. |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه و غواړي چې ستونزمنې کلمې ووايي او يو تن زده کوونکی دې هغه د تختې پر مخ وليکي او ښوونکی دې کلمې ورته معنا کړي. | ـ زده کوونکي په وار سره ستونزمنې کلمې وايي او يو تن زده کوونکی يې د تختې پر مخ ليکي او په معنا او مفهوم يې ځانونه پوهوي. |
| ـ ښوونکی دې په څو زده کوونکو باندې د متن يوه يوه برخه په وار سره ولولي او په لوستلو کې دې ورسره پوره مرسته وکړي. | ـ زده کوونکي په خپل وار د متن يوه يوه برخه لولي او د خپلو لوستلو مهارت پياوړی کوي. |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې په خپلو ډلو کې د متن ادات په نښه کړي او د هرې ډلې يو استازی دې د ټولګي مخې ته راشي او خپل په نښه شوي ادات دې په لوړ آواز ولولي او هم دې د تختې پر مخ وليکي. | – زده کوونکي په دوو ډلو کې له متن څخه ادات په نښه کوي او د ښوونکی پر لارښوونې يې د تختې مخې ته په لوړ آواز وايي او بيا يې پرتختې ليکي. |
| ـ ښوونکی دې وروسته په لنډه توګه ادات تعريف کړي او مثالونه دې د تختې پر مخ وليکي. | ـ زده کوونکي د اداتو په اړه معلومات تر لاسه کوي او مثالونه يې په خپلو کتابچو کې ليکي. |
| ـ ښوونکی دې د متن لنډيز يو وار بيا تکرار کړي او د متن اصلي پيغام دې زده کوونکو ته ووايي. | ـ زده کوونکي غوږ نيسي او د متن په اصلي پيغام او مفهوم ځانونه پوهوي. |
| ـ ښوونکی د کتاب د لوست شپږم فعاليت د ارزونې په توګه له زده کوونکو څخه پوښتي. | ـ زده کوونکي پوښتنو ته مناسب ځوابونه وايي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکوته په لومړي او دويم درسي ساعت کې په خپله خوښه او په دريمه ورځ د لوست د پای کورنۍ دنده وروسپاري او په بله ورځ دې وګوري. | ـ زده کوونکي د سپارل شوې دندې موضوع په خپلو کتابچو کې ليکي او په کورونو کې يې بشپړوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

ـ **مولانا عبدالقادر**: د سيد ابو زر زوی دی چې په ۱۹۰۵ کال د يوسفزو د سيمې د سوابۍ په ټوپۍ نومې کلي کې زېږېدلی دی.

نوموړی يوه عالم سړی و، د فلسفي او منطقي فکر څښتن و، شعرونه هم لري، خو په نثر کې يې پوره لاس لاره.

مولاناعبدالقادر په ۱۹٦۹ کال په اکتوبر کې وفات شوی دی.

ـ **پوهاند صديق الله رښتين**: رښتين د مولوي تاج محمد خان زوی، ۱۳۴۰ هـ.ق. ـ ۱۲۹۸هـ.ل. کال د مومندو په سره کمر کې زېږېدلی و. د پښتو ژبې او ادبياتو يو مسلکي، پياوړی ، پوخ ليکوال او ژبپوه و.

پوهاند رښتين کلونه کلونه د هېواد په علمي او فرهنګي ادارو کې بېلا بېلې دندې، تر سره کړې.
پوهاند رښتين سربېره له پښتو په دري، عربي او اردو ژبو هم ښه پوهېده. په دغو ژبو یې یو شمېر کتابونه او مقالې لیکلـــې او خپرې کړې دي. نوموړي په بېلا بېلو موضوعاتو کې، لکه: ګرامر، ادبیاتو تاریخ، هنري نثر او نورو کې په لس ګونـــو کتابونه لیکلي دي چې ځینې یې د ادبي پښتو اشتقاقونه او ترکیبونه، پښتو ګرامر په دري ژبه، پښتانه شعراء دویم ټـــوک د پښتو ادب تاریخ، پښتو ژبښودنه، د پښتو او سانسکریټ نژدېوالې، د پښتو نثر هنداره.
پوهاند رښتين په ۱۳۷۷هــ.ش. کال له نړۍ سترګې پټې کړې او د ننګرهار ولایت په بهسودو کې خاورو تـــه وســـپارل شو.
_ **اجمل خټک**: اجمل خټک د حکمت خان زوی په ۱۹۲۵م. کال د نوښار په اکوړي کې زېږېدلی دی. د پښتو ژبـــې تکړه ادیب او لیکوال و.

اضافي معلومات

**د ادبي ليکونو پېژندنه**

ادبي لیکونه هم د نورو نثري ادبي ژانرونو په څېر د ټولو له خوا منلې پېژندنه نه لري، ادبي څېړونکو یې د پېژندنې لپاره یو لړ تشریحي څرګندونې کړي، چې دلته یې ځینې رااخلو:
د زرینې ځانګې لیکوال لیکي: (حبیب الله رفیع) ادبي لیکونه د هنري ادب یو بل ژانر دی چې په خاص سبک او ډول په مطالبو رڼا اچوي.
یوه بله پېژندنه یې داسې ده.
**ادبي ليکونـه**: هغه لیکونه دي، چې په کې ټولنیز، سیاسي، تاریخي، اخلاقي، انتقادي او انتباهي مسایل په ادبي ژبه انځور یا وړاندې کېږي.
د ادبي لیکونو د پېژندنې په اړه د دې پورته څرګندونو په رڼا کې د پایلې په توګه ویلی شو.
ادبي لیکونه هغه لیکونه دي چې په ځانګړې هنري او ادبي بڼه لیکل کېږي، او د هنري نثر د یو ځانګړي ژبني هنري ژانـــر په توګه منل شوې او ګڼل شوي دي.
په دې لیکونو کې یو لړ مهم انتقادي، سیاسي، فلسفي او ادبي مسایل لیکل کېږي، خو ژبه یې هنري ادبي او د تخیل رنګ پرې غالب وي. له استعارو. کنایو، تشبیهاتو او نورو ادبي صنعتونو څخه په کې کار اخیستل شوی وي. ژبه یـــې خـــوږه دومره ښکلې او په زړه پورې وي، چې د لوستونکي ادبي تنده ماتوي .

**د ادبي ليکونو ارزښت او اهميت**

ادبي لیکونه د یوه ځانګړي هنري نثري ژانر په توګه له ستر ادبي ارزښت او اهمیت څخه برخمن دی. په ادبیاتو کې د راز راز ادبي ډولونو(ژانرونو) په راپیدا کېدو سره هغه لیکونه چې په ادبي ژبه لیکل شوي وو د یو ځانګړي ادبي ژانر په توګـــه ومنل شول. دا ډول لیکونه په مجلو کې چاپ او په کتابونو کې راټول او د ملتونو د ادب ارزښتناکه برخه یې جوړه کړې ده.
ادبي لیکونه مرسل او مرسل الیه ترمنځ د فکر زرین مزي وغځول، د مینې، تصوف، فلسفې او علم رازونه یې شریک کړل او د بشري فکر په ذخیره کې یې ښه زیاتونه راوسته، په ختیځ او لویدیځ کې له ادبي لیکونو څخه په سلګونو جوړ شـــوي کتابونه راغونډ او خپاره شول، په عربي، فارسي او اردو ژبو کې د دې ډول لیکونو یو شمېر مجموعې راټولې شوي چـــې راز راز ادبي، ټولنیز، تصوفي، سیاسي او د ژوند نور مسایل پکې رانغښتل شوي دي، غوره بېلګې یـــې د حکـــیم ســـنایي غزنوي، امام رباني، میافقیرالله جلال آبادي، میرزا اسدالله غالب، علامه اقبال لاهوري، سید احمد شهید او داســـې نـــورو

پیرانو، فیلسوفانو، عارفانو او مبارزانو لیکونه یا مکتوبات دي چې زیاتره یې د غوره مطالبو ترڅنګ ښه ادبـــي بلاغـــت او فصاحت هم لري.
په لویدیځه نړۍ کې هم د دې ډول لیکونو بېلګې زیاتې دي. د ((مولانا عبدالقادر خطونه)) د سریزې لیکوال پروفیـــسر نواز طایر د څرګندونو له مخې د فرانسوي مفکر والتېر له مړینې وروسته د هغه په خپل کتابتون کې د هغه لاس لیکلي اویا زره شاوخوا لیکونه موجود وو.
ادبي لیکونود خپل مؤثریت او اهمیت له کبله دومره مقبولیت ترلاسه کړ چې ځینو لیکوالــو د خپــل مــافي ضــمیر د بیانولولپاره ټولنو او خلکوته د رسولو په غرض د فرضي مخاطب په نامه د ټولو لپاره د لیکونو لیکل پیل کړل او له همدې ځایه ادبي لیکونه په دوو برخو: تخیلي او واقعي ادبي لیکونو باندې وېشل شوي او څرنګه چې دا دویمه برخه د ټولو یا هر چاپه نوم وو، نو ځکه یې لوستونکي هم تر لومړي زیات وو او په دې ډول لیکونو د یوه خواړه او په زړه پورې ادبي ژانـــر په توګه د ادب په نړۍ کې ځای وموند او دا لړۍ لا روانه ده، د واقعي لیکونو مجموعې هم راغونـــډېږي او خپرېـــږي د تخیلي لیکونو ترڅنګ تعلیمي لیکونه هم ځای لري چې خلکو ته د لیک لیکلو لارې چارې ورښیي او د لیک د امـــلاء او انشاء دواړه لارې ورته روښانوي.

## د ادبي لیکونو ډولونه

ادبپوهانو ادبي لیکونه په دوو برخو بېل کړي دي:

**۱ــ هغه لیکونه چې** ټاکلی مخاطب نه لري او د یو فرضي مخاطب په نوم لیکل کېږي، د دې ډول لیکونو قالب لیکوال ته د خپلو افکارو د څرګندولو لپاره یو بهانه ده چې د هغه په وسیله خلکو ته افکار او نظریات بیانوي.
د لیکنې روش یې داسې دی چې لیکوال د څو کلمو یا دوو دریو لنډو جملو څخه وروسته چې خپل فرضي مخاطب ته یې وړاندې کوي، هغه موضوع چې په پام کې یې لري څاري او تر پایه یې بیانوي. داسې هم کېدای شي چې دا لیکنې د پـــای یوې یا دوو جملو ته بیا هم شخصي او خصوصي بڼه ورکړي او خبره پر هغې پای ته رسوي.
په پښتو ادب کې د دې ډول لیکونو بېلګې عبدالرؤوف بېنوا ((د زړه خواله)) د روغ لېوني ((بي بي نوره)) د اجمل خټک ((کچکول)) او د عبدالرؤوف قتیل ((ادبي لیکونه)) دي او په نړیوال ادب کې خپلې لور ته، جواهر لعل نهـــرو د یـــرش لیکونه دي چې په ۱۹۲۸ز. کال لیکل شوي، په دري ژباړل شوي او په ایران کې د ((نامه های پدر به دخترش)) په نـــوم چاپ شوي دي. فرانسوي لیکوالې الفونس هم د دغه ډول لیکونو  په قالب کې ډېرې لیکنې کړي.  سیاسي، تـــاریخي او فرهنګي مسایل یې په کې وړاندې کړي دي. ځینو لیکوالود وصیت نامې په بڼه هم دغـــه ډول لیکونـــه لیکلـــي او خپـــل مقصدونه او موخې یې پرې بیان کړي دي، د دې ډول لیک په مقابل کې یو شخص مخاطب نه وي بلکې د لیکوال خبـــره عامه د ټول قوم، ولس، ټولنې او ملت لپاره وي.
په پښتو ادب کې د دې ډول لیک ډېره ښه بېلګه د خوشحال خان بابا ((وصیت نامه)) ده چې هغه له زندانه خپلې کورنۍ ته رالېږلې او افضل خان خټک هغه په تاریخ مرصع کې خوندي کړې ده.
**۲ــ هغه لیکونه چې** په عامه توګه د ادبیاتو (شاعرانو، لیکوالانو) ترمنځ تبادله کېږي. په پښتو ادبیاتو کې یې غوره بېلګې د امیر حمزه شینواري او جعفر اځکزي ترمنځ تبادله شوي لیکونه دي چې د ((انسان او خدای)) پـــه نـــوم او د ((مولانـــا عبدالقادر خطونه)) دي چې په کتابي بڼو خپاره شوي دي. د دغه ډول لیکونو بېلګې په نړیوال ادب کې هـــم زیـــاتې دي، چې نن تاریخ لیکونکي د دغه ډول لیکونو له مخې چې لیکوالو، هنروالو، سیاست والو، د تاریخ او د ادب پوهانو خپلـــو دوستانو او ارادتمندانو ته لیکلي دي د هغوی د شخصیت، د وخت د حالاتو او شرایطو تحلیل او څېړنه کوي.

له عادي ليکونو سره د ادبي ليکونو توپير:
هغه ځانګړنه چې ادبي ليکنې له عادي ليکونو څخه رابېلوي هغه هنري او ادبي ارزښتونه دي، همدغه هنري ارزښت ادبي ليکونه له عادي ليکونو څخه رابېلوي.
عادي شخصي ليکونه هغه دي چې د وګړو ترمنځه د بېلا بېلو علايقو ، اړيکو له مخې د ډول ډول مقصدونو او افکارو د تبادلې لپاره ليکل کېږي، دغه ليکونه چې څومره لنډ، موخه او مطلب په کې په ساده او روانه ژبه او څرګنده توګه بيان شوی وي. د مقابل لوري سويه او موقف هم په پام کې نيول شوی وي غوره ګڼل کېږي، خو ادبي ليکونه بيا خپل ځانګړي معيارونه لري. په هغو کې بايد تر هر څه لومړی ادبي او معياري ژبه کارول شوې وي له عادي ورځنيو اړتياوو څخه پورته د روحي او معنوي اړتياوو د پوره کولو دنده ترسره کوي. دغه ډول ليکونه د دې ترڅنګ چې د لوستونکي په ذهن کې ژوره اغېزه کوي، د هغه په عواطفو کې خوځښت راولي، مقابل لوري ته احساس او جاذبه په اغېزناکه توګه ورلېږدوي او په سلوک کې د بدلون سبب ګرځي.
په دغه ډول ليکنو کې تخيل، د خبرې زړه راښکون، د لفظ او معنا برابري او نور رعايت شوي وي.
په عادي ليکونو کې مخاطب معلوم وي د دغه ډول ليک ليکنې په چوکاټ کې چې خطاب، سريزه، اساسي مطلب، د اساسي ټکيو لنډيز وروستۍ هيله، وروستی خطاب او لاسليک په کې شامل دی. په ترتيب سره مقابل لوري ته وړاندې کېږي، خو په ادبي هغو ليکونو کې چې د فرضي مخاطب په نامه ليکل کېږي، دا چوکاټ ډېر توپير لري.
د دې ډول ادبي ليکونو روش داسې دی، چې ليکوال خپل فرضي مخاطب ته د يوې، دوو جملو وروسته هغه موضوع چې غواړي په عامه توګه يې خلکو ته وړاندې کړي، له يوې مخې تر پايه يې بيانوي.
لنډه دا چې ادبي ليکونه له عادي ليکونو سره ډېر جوت توپير لري، په پوهې او معلوماتو سربېره د لوستونکي معنوي او روحي تنده هم په اغېزمنه توګه خړوبوي، ژورې اغېزې ښندي. عواطف او جذبات راپاروي، چې عادي ليکونه له دې ځانګړنې بې برخې دي.

## د ادبي ليکنو چوکاټ

ادبي ليکونه د يو ځانګړي ادبي ژانر په توګه د ليکنې لپاره يو چوکاټ هم لري چې د ليک موضوع د څومره والي له مخې په هغو ټاکلو حدودو کې را اخلي، د دغې ليکنې حدود د نورو ادبي ژانرونو، لکه: ډرامه، ناول، لنډه کيسه، طنز، ادبي ټوټه، ژوند ليک او نوروسره توپيرلري.
همدارنګه ژورناليستي نور ژانرونه لکه: خبر، مرکې، راپورتاژ، تحليل، تبصرې او ... د ليکوالۍ نورو ژانرونه لکه: مقالې او کتاب ليکنې له چوکاټ سره پوره توپير لري او په خپله د عادي ليک له ليکنې چوکاټ سره هم لږ و ډېر توپير لري.
د بېلګې په توګه: د ليکوالۍ د اصولو له مخې د يو معياري، عادي شخصي ليک په چوکاټ کې دا لاندې برخې شاملې دي.
لومړی ډول ادبي ليکونه چې د ليکوالو ترمنځ تبادله کېږي او يا د يوې علمي فرهنګي اداري يا خپرونې د مسوول په نامه ليکل کېږي او زياتره په کې علمي او ادبي مسايل مطرح او په ادبي هنري ژبه بيانېږي. په ليکنې چوکاټ کې يې خطاب، له اصلي مطلب څخه څو کرښې د سريزې په توګه او بيا اصلي مطلب مطرح کېږي چې يا په کې د ادبي علمي او فرهنګي مسايلو ارزونه، کره کتنه او نيوکې ، هيلې، غوښتنې، پوښتنې ځوابونه، څرګندونې او وړانديزونه وي، د اساسي ټکيو لنډيز وروستی خطاب او لاسليک هم په کې وي.
خو په دويم ډول ادبي ليکونو کې چې ټاکلی مخاطب نه لري او د يو فرضي مخاطب په نوم يې ليکي. د دې ډول ادبي ليکونو قالب د خپلونظرياتو د څرګندولو له پاره يوه پلمه ګرځولې وي او ليکوال فرضي مخاطب ته له خطابې وروسته

خپل د پام وړ مطلب د یوې علمي، ادبي مقالې په ښه ترتیب او په منظمه توګه وړاندې کوي. ژبه یې ادبي، خوږه او رنګینه وي، خو په نوره لیکنه کې د مقالې په څېر تلوسه، منظر کښنه، تخیل، استعارات کنایې، تشبیهات او نورې لفظي او معنوي ادبي ښېګڼې موجودې وي او مطلب د لیک په چوکاټ کې وړاندې کېږي.
د ادبي لیک لیکونکي ته په کار دي چې د دغه ادبي ډول چوکاټ ته د لیکلو پر مهال پوره پاملرنه وکړي او له حـــدودو یې ونه وځي.

## په پښتو ادب کې د ادبي لیکونو تاریخي بهیر

د پښتو ژبې په ادب کې چې د ادبي لیکونو د تاریخي بهیر څېړنې په لړ کې د ادبي لیکونو کومې ډېرې لرغــونې بېلګــې زموږ مخې ته راځي هغه منظومې دي چې د پټې خزانې په وسیله تر موږ رارسېدلي دي.
د لیک دغه لومړنۍ منظومې بېلګې له نن څخه څه د پاسه زر کاله دمخه د شیخ رضي او د هغه دکاکا زوی نــصر لــودي ترمنځ تبادله شوي دي. شیخ رضي چې خبر شو چې تر بور یې (نصر لودي) له ملحدینو سره ناسته ولاړه لري او د هغــوی په عقیده ګروهیدلی، نو یو منظوم لیک یې ورته لیکلی چې مطلع یې داسې ده:
د الحاد په لور دې تر پلل ګروه دې زموږ و توراوه
او چې کله لودي ته دا لیک ورسېد نو په ځواب کې یې داسې وویل:
د الحاد په تور تورن شوم زه لرغون خو ملحد نه یم
د منظوم لیک نورې بېلګې موږ د خوشحال خان خټک په شعري کلیاتو کې وینو چې یو یې د بایز ید خـــان د لیـــک پـــه ځواب کې او بل یې خپل زوی بهرام ته لیکلی دی چې مطلع یې دا ده
زما زړه له چانه روغ نه دی بهرامه له عالم سره مې زیست دی له ناکامه
تر کومه چې خبره په منثورو لیکونو پورې اړه لري. بیا هم موږ یې لومړنۍ بېلګه د خوشحال خان بابا په آثارو کې مومو او هغه اوه پرکه وصیت نامه ده چې په ۱۰۷٦ هجري قمري کال یې د هند له زندانه اشرف خان هجري ته رالېږلې وه.
د منظوم لیک یوه بله بېلګه د سکندرخان خټک هغه لیک دی چې په ۱۰۹۳هـــ.ق. کال یې خپـــل ورور اشـــرف خـــان هجري ته، هغه وخت چې په دکن کې بندي و لېږلی دی او د خپلې کورنۍ او سردارۍ په اړه یې سیاسي او ټولنیز حالات ورته لیکلي دي. په تاریخ مرصع کې د افضل خان خټک د ځینو منثورو لیکنو نورې بېلګې هم مومو‌چې دده او ځینو تـــر منځ تبادله شوي دی .
تر کومه چې خبره په پښتو ادب کې په ادبي لیکونو پورې اړه لري، د روانې هجري لمریزې پېړۍ په لومړۍ لـــسیزه کـــې چې په افغانستان او پښتونخوا کې د پښتو چاپي موقوته خپرونو او مجلو بهیر پیل شوی، د دغه ډول ادبي لیکونو لیکل هم دود او عام شوي او په دغو خپرونو کې وخت په وخت خپاره شوي دي چې د بېلګې په توګه دا څو خپرونې یادوو
په افغانستان کې: کابل مجله، طلوع افغان (ورځپاڼه)، پښتو مجله، هېواد (ورځپاڼه)، کندهار (مجله)، ننګرهـــار (مجلـــه)، زیري (جریده)، ګهیځ (جریده)، اتحاد مشرقي (جریده) وړمه (مجله) او ... .


**اخځلیکونه**

_ د نثري ادب ډولونه (ادبي ژانرونه)، لیکوال: څېړنوال سید محی الدین هاشمي
– ادب پوهنه همدالیکوال
– دلیکوالۍ فن څیړنوال سید محی الدین هاشمي.

## یوویشتم لوست

### د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | سیند (نوی ادبي هنري نثر) | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي چې لاندې موخې ترلاسه کړي.<br>ـ د ادبي هنري نثر په معنا او مفهوم باندې به پوه شي.<br>ـ د ادبي نثر ډولونه به وپېژني.<br>ـ متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>ـ د متن په معنااو مفهوم به خبرې وکړای شي.<br>ـ د ګل پاچا الفت په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>ـ د متن مفهوم به په خو کرښو کې ولیکلای شي.<br>ـ لیک، لوست او وینا به یې پیاوړې شي.<br>ـ د متن د پای فعالیتونه به په یوازې توګه ترسره کړای شي. | |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، پوښتنې او ځوابونه، یو کسیز کار، ډله ییز کار او خبرې کول | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | قلم، کتابچه، تباشیر، تخته، تخته پاک، د کلمو او الفاظو لیکل شوي چارټونه | |
| د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د څارنې په وسیله ارزونه او د یادداشت کتابچه | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام او ستړي مه شي، حاضري اخیستل، د کورنۍ دندې کتنه او د تېر لوست څخه یادونه | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی دې لاندې پوښتنې له زده کوونکو څخه وپوښتي او هم کولای شي چې دې ته ورته نورې پوښتنې هم له زده کوونکو څخه وپوښتي:<br>۱ـ ایا د ادبي نثر له کلمې سره اشنا یاست؟<br>۲ـ کوم ادبي نثر مو لوستلای دی؟<br>۳ـ ادبي نثر له عادي نثر سره څه توپیر لري؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| ـ ښوونکی دې متن په لوړ او مناسب غږ ولولي او د لوست په بهیر کې دې د ټولګي څارنه هم وکړي.<br>ـ ښوونکی له زده کوونکو څخه غواړي چې متن په چوپه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې او الفاظ دې په نښه کړي.<br>ـ ښوونکی دې لومړی زده کوونکو ته بلنه ورکړي چې ستونزمنې کلمې معنا کړي او که هغوی یې نشي معنا کولی | ـ زده کوونکي خپلو کتابونو ته ګوري او ښه غوږ ورته نیسي.<br><br>ـ زده کوونکي متن په چوپه خوله لولي، ستونزمنې کلمې په نښه کوي.<br>ـ زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم | |

| | |
|---|---|
| پخپله ښوونکی دې ورسره لازمه مرسته وکړي. | عمل کوي. |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکي وګوماري چې په خپل وار سره د متن يوه يوه برخه ولولي او د اړتيا په وخت کې دې خپله ښوونکی هم ورسره مرسته وکړي، ترڅو متن سم ولولي. | ــ زده کوونکي په خپل وار سره متن لولي. هڅه کوي چې په لوستلو کې د وياندۍ اصل ته پام وکړي. |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکي په دوو ډلو وويشي. يوه ډله دې دلوستل شوي متن په اړه پوښتنې وکړي او بله ډله دې ځوابونه ووايي. | ــ زده کوونکي له لارښوونې سره سم عمل کوي او يو له بل څخه پوښتنې کوي. |
| ــ ښوونکی دې له ځو تنو زده کوونکو څخه وغواړي چې د ټولګي مخې ته راشي او دمتن مطلب او مفهوم خپلو نورو ټولګيوالو ته ووايي، خپله ښوونکی دې هم مرسته ورسره وکړي. | ــ زده کوونکي د ټولګي مخې ته راځي او د درس په اړه خبرې کوي. نور زده کوونکي ورته پوره غوږ نيسي. |
| ــ ښوونکی دې ځو تنه زده کوونکي د تختې مخې ته راوغواړي چې د متن ځو کرښې د املا په ډول وليکي. ښوونکی دې ورسره لازمه مرسته وکړي. | ــ زده کوونکي د تختې مخې ته راځي او متن د املا په توګه ليکي. |
| ــ ښوونکی دې د امکان په صورت کې په متن کې راغلي د کتابونو او اشخاصو نومونو په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکړي او مهم ټکي دې په تختې ورته وليکي. | ــ زده کوونکي ورته ژوره پاملرنه کوي او مهم ټکي په خپلو کتابچو کې ليکي. |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکوته په لومړي او دويم درسي ساعت کې په خپله خوښه او په دريمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده ورته وسپاري او په بله ورځ دې وګوري. | ــ زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع ګانې يادداشتوي او په کورونو کې يې بشپړوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

ګل پاچاالفت د پښتو ژبې نوميالی شاعر، ستر اديب او ليکوال، فرهنګي شخصيت، د ټولنې خدمت کوونکی د مير سيد پاچا زوی و، په کال ۱۲۷۸لمريز کې د لغمان په کڅ کې زېږېدلی دی. استاد الفت خپلو خلکو او هېواد ته د خدمت لپاره بېلا بېلې دندې ترسره کړي دي.

الفت صاحب په لس ګونو کتابونه او مقالې ليکلي چې د ځينو کتابونو نومونه يې دا دي.

لوړ خيالونه او ژور فکرونه، غوره اشعار، املا او انشاء، ليکوالي، ادبي بحثونه، عالي افکار او په لس ګونو نور کتابونه.

ښاغلی الفت په ۱۳٥٦لمريز کال د ليندۍ د مياشتې په ۲۸ په کابل کې مړ او د لغمان په کڅ کې خاورو ته سپارل شوی دی.

ــ **ادبي ټوټه**: د هنري ادبياتو يو ځانګړی ډول دی چې ادبپوهانود ((منثور شعر)) په نامه هم ياد کړی دی او دا ځکه چې اصلاً نثر دی، خو شعري کيفيت لري. په دې ډول ليکنو کې د لوړې انشاء خيال ساتل کېږي. معمولاً حکايوي بڼه لري. د يو حقيقت او واقعيت په اړه په زړه پورې تشريح او توضيح کوي، خو دا توضيح او تشريح په داسې رنګينو الفاظو کې نغښتې وي چې په بشري احساس او عواطفو ژور اغېز کوي.

**اضافي معلومات**

**د هنري (ادبي) نثر پېژندنه**

هره هغه وینا که منظومه وي که منثوره یا تحریري وي یا شفاهي، خو چې هنري ارزښت ولري، ادب بلل کېږي. هنریت یا هنري ارزښت هغه ځانګړنه ده چې ادبي او نورې عامې عادي لیکنې سره بېلوي. د هنري یا ادبي نثر په لیکنه کې د لیکوال ذوق، احساس او تمایل د یو مطلب یا واقعیت د افادې لپاره بنسټیز ارزښت او اهمیت لري. لیکوال هغه څه چې لیدلي، اورېدلي، احساس کړي او یا یې په ذهن او خیال کې تېرېږي بیانوي، خو د تحقیقي او علمي لیکنو په څېر دلیل راوړلو ته هېڅ اړتیا نه لري.

د ادبي یا هنري نثر په لیکنه کې تخیل ستر نقش لري، خو د لیکوالۍ په دغه ډګر کې له دغه ځواک (تخیل) څخه مرسته غوښتل یوازې تر هغې لازم دي چې پېښې ته د باور وړ ښکلا او ځلا ورکړي، په هغې کې د منلو او کشش داسې جاذبه او ځواک پیدا کړي چې زړونو ته په آسانۍ او ژر لاره وکړي، نه تر دې اندازې او یا په دې بڼه چې هغه ادبي لیکنه سلیم عقل او انساني پوهې ته د منلو او قبلولو وړ ونه برېښي او په دې وسیله د خبرې ارزښت کم یا بېخي له منځه ولاړ شي.

په ادبي ټوټه، نکل او ادبي انځور کې بیا یو څه توپیر لري، د تخیل لوړتیا د مفهوم ژورتیا او الفاظو رنګیني پکې د داستاني ادبیاتو پر پرتله زیاته وي او کله کله دومره خوږ او له ډېر لوړ تخیل څخه پکې کار اخیستل شوی وي چې د یو عالي شعر په څېر خوند او کیفیت لري، له همدې امله ورته منثور شعر هم وایي.

همدارنګه په طنز کې بیا دا نثر بېل خوند او رنګ لري او داستاني ادبیاتو په څېر صراحت په کې نه وي، بلکې هر څه په اشارو او کنایو بیان شوي او پرې پوهېدنه هم ژور فکر او ځیرکتیا غواړي، خو په عامه توګه د هنري ادبي نثر ځانګړنې او د جوړښت توکي تخیل، د خبرې زړه راښکون، ساده ګي او رواني، د لفظ او معنا برابري او د لیکنې ځانګړی سبک بلل شوي دي چې وروسته پرې ځانګړې بحث کېږي.

**د هنري ـ ادبي نثر د جوړښت اساسي توکي او ځانګړنې**: هنري ارزښت د ادب مهمه او بنسټیزه ځانګړنه ده او تخیل د دغه هنري ارزښت ډېره اساسي برخه جوړوي، نو د هنري ادبي نثر لومړنۍ ځانګړنه هم تخیل بللی شو. همدغه تخیل دی چې یوې عادي پېښې ته ښکلا وربخښي، بڼه او لوری ورته ټاکي، ټولې ادبي پدیدې که څه هم حقیقي او رښتینې پېښې وي د تخیل په وړانګو د ښکلا پوړ ته رسېږي.

په ادبي ــ هنري نثر کې د لیکوال تصور او تخیلي ځواک ډېر ستر او ارزښتمن نقش او ونډه لري چې لیکوال د خپل تخیلي ځواک په ملتیا د لیکوالۍ د فني مهارتونو په وسیله په الفاظو کې د منظر کښنې او صحنه جوړونې چارې په ډېر دقت سرته رسوي او حالات یا واقعیتونه په الفاظو کې داسې انځوروي چې لوستونکي یا اورېدونکي فکر کوي چې هر څه په خپلو سترګو ویني او ځان کټ مټ په صحنه کې شامل احساسوي.

ساده ګي او رواني د هنري ادبي نثر یوه ډېره مهمه ځانګړنه ده. پخوا به له ذهن او محاورې څخه لرې کړکېچنې او پېچلې کلمې د لوړې او عالي انشاء یا لیکوالۍ غوره ځانګړنه بلل کېده، خو اوس دغه ډول لیکنه هېڅ کله ادبي معقولیت او عام ټولنیز مقبولیت نه شي ترلاسه کولی او نه یې ځوک د غوره ادبي اثارو په ډله کې شمېري، څومره چې یوه لیکنه ساده، طبیعي، بې تکلفه او عام فهمه وي، لوړ ادبي ارزښت لري.

د خبرې زړه راښکون د ادبي نثر ځانګړنه ده چې هغه د لوستونکي پر ذهن د معنا او مفهوم د اغېز لپاره ډېر اغېزناک دی. زړه راښکونکې خبره د لیکوال فکر، عواطف په ډېرې چټکۍ او اسانۍ سره لوستونکي یا اورېدونکي ته ورلېږدوي او د لیکوال او لوستونکي د ذهني فضا په پیوستون کې ډېره مرسته کوي. د لفظ او معنا برابري د هنري ادبي نثر د جوړښت یوه بله ځانګړنه ده، ادبي هنري نثر باید داسې وي چې لوستونکي یا اورېدونکي یې له معنا پرته بل څه ته پاملرنه ونه کړي.

د پایلې په توګه ویلی شو: ادبي هنري نثر د لیکنې سبک له مخې له نورو عادي شعرونو سره ډېر جوت توپیر لري. تخیل، منظر کښنه ، ساده ګي او رواني د کلمو او خبرو زړه راښکون يې د جوړښت ډېرې مهمې ځانګړنې دي چې د لوستونکي او اورېدونکي معنوي او روحي تنده په ډېره اغېزمنه توګه خړوبوي، ژورې اغېزې ښندي، عواطف او جذبات راپاروي.

## په هنري ادبیاتو کې د پیغام مسئله

هره ادبي لیکنه خامخا د يو مقصد او غرض لپاره کېږي، خلکو او ټولنې ته خامخا يو پیغام له ځان سره لري، پــه هنـــري ادبیاتو کې دا پیغام او غرض په واقعیت کې هماغه اغېزوي چې لیکوال يې د احساس او جذبې په بڼه د پند، خوند، تنبــه، کرکې او ... په هیله لوستونکي یا اورېدونکي ته ورلېږدول غواړي.
منثور هنري ادبیات ډېر ژانرونه لري، د بېلګې په توګه موږ دلته په ځینو نثري ادبي ژانرونو باندې خبرې کوو.
((لنډه کیسه)) د منثور هنري ادب يو ډېر مشهور او په زړه پورې ډول دی. دا چې لمن يې لنډه او معمولاً پکې يوه پېـــښه وي، د لنډې کیسې مقصد او پیغام د کیسې په وروستۍ برخه یا پایله کې وړاندې کېږي.
د کیسې د پایلې په برخه کې لیکوال لوستونکی یا اورېدونکی له ځان سره د تخیل په وزرونو ډېرو لوړ وتـــه خېـــژوي او معمولاً د څه نتیجې د ښوولو پر ځای هغه له يوې کشالې سره مخامخ کړي. دلته لیکوال معمولاً خپل غرض او پیغـــام پـــه مستقیمه توګه نه وايي، بلکې هغه فیصله د لوستونکي یا اورېدونکي قضاوت ته پرېږدي چې په دغه حالت کې نو بیا ســـمه او مناسبه فیصله او د کیسې په غرض او پیغام پوهېدنه د لوستونکي او اورېدونکي په استعداد، ذکاوت او له ټولنیز ژونـــد پېښنو څخه په مطالعې او تجربې پورې مستقیماً اړه لري.
د هنري نثر په دوو نورو ژانرونو ((ناول)) او ((ډرامه)) کې چې لمن او د پېښنو لړۍ يې د لنډې کیسې په نـــسبت پراخـــه ده، د لیکوال پیغام د دغو لیکنو پر پای سربېره په بېلا بېلو څپرکو کې هم وړاندې کېدای شي. لیکوال د کیسې مثبـــت او منفي کردارونه، د مقابلې، مجادلې او هدف ته د رسېدو په ډګر کې د خپلو کړنو په وسیله له يو داســـې کـــشمکش، او حالت سره مخامخ کړي او د هغوی د هیلو په جذباتو کې د ملګرتیا، همدردۍ، او یا د کینې او کرکـــې روحیـــه راولاړه کړي. یا په بله وینا له مثبتو کردارونو سره ځان په خوښۍ، غم، خپګان او ستونزو کې شریک کړي. او د منفي کردارونو پر ضد يې احساسات او جذبات راوپارېږي. همدغه جذبه، احساس او اغېز په واقعیت کې د دغو هنري ادبي لیکنو پیغـــام دی.
**ادبي ټوټه**: د منثورو یا هنري ادبیاتو يو بل په زړه پورې ډول دی. دغه ادبي ډول په ادبي او هنري ژبه د يو حقیقـــت او واقعیت په هکله په زړه پورې تشریح او توضیح وړاندې کوي، خو دا توضیح او تشریح په ډېرو ښکلیو او رنګینو الفـــاظو کې نغښتې وي. لیکوال د خپل پیغام او غرض د افادې او مقابل لوري ته د لېږدونې لپاره د لوړې انشاء خیـــال ســـاتي او خپله لیکنه د ادبي فنونو، تشبیهاتو او استعارو په ګاڼه پسولي، خو ټولنیز مسایل ژور عقیدتي، سیاسي او فلسفي افکـــار او ... په الفاظو کې په خواږه عبارت راونغاړي، خپل شاعرانه احساس، جذبه او عواطف ورسره په ډېر مهارت ملګري کړي او نورو ته يې په داسې انداز وړاندې کوي چې د هغو پر احساس، جذبه او عواطفو هم هغسې اغېزه وکړي، چې لیکوالـــل يې غواړي.
**طنـز**: هم په هنري ادبیاتو کې د یادونې وړ ځای لري. لیکوال چې د ټولنې له نادودو، او ناوړه وضعیت څخه رنـــځ وړي، د دې پر ځای چې خپل دغه رنځ او د ټولنیزې اصلاح او سمون فکر د ګیلې یا پند او نصیحت په ژبه ووايي، هغه د ټوکو ټکالو په قالب کې وړاندې کوي او په دې وسیله ناوړه عمل او دهغه عاملین او خاوندان د ریشخند په کمچینـــه او نـــیش وهي.

طنز چې په واقعیت کې له قهر او غوسې نه ډکه خندا ده، مقابل لوری ظاهراً خندوي، خو په عین وخت کې د نادودو په مقابل کې قهر، او کرکه راولاړوي د اصلاح او سمون جذبه راویښوي، همدغه د قهر، غوسې او کرکې راولاړول او یا د اصلاح او سمون لپاره تنبه او جذبه د طنزي لیکنې پیغام دی چې لیکوال یې په ځانګړې لیکنې مهارت سره مقابل لوري ته ورلېږدوي.
همدارنګه په نورو نثري هنري ادبي ژانرونو( نکل، ادبي لیکونه، ادبي راپورتاژ، سفرنامه او ... )کې مقابل لوري ته لیکوال د خپل پیغام د لېږدونې لپاره لیکنی ژبې ته هنري بڼه ورکوي او د استعارو، کنایو، تشبیهاتو او ډول ډول ادبي صنایعو څخه کار اخلي او خپله لیکنه دومره خوږه، ښکلې او په زړه پورې کوي چې د لوستونکي او اورېدونکي په احساساتو او عواطفو کې خوځښت راولي او هغه اصلي پیغام اخیستنې او پرې پوهېدنې ته چمتو کوي.
همدغه د یو لیکوال د بریالیتوب لپاره تر ټولو مهمه ځانګړنه ده چې خپل احساس، جذبه او عاطفه په اغېزمنه توګه نورو ته ولېږدولای شي او په نورو کې هم هغه شان جذبه او احساس راپارولای شي چې په خپله په ده کې و او د هغه د ژور اغېز له مخې یې دا ادبي هنري لیکنه پنځولې (تخلیق) کړې ده.

## په پښتو ادب کې د هنري نثر څرکونه او لومړني بنسټګر

که د پښتو ادب پرمختیایي بهیر ته وګورو، نو د ادبي تاریخ د دویمې یا منځنۍ دورې د درېم پړاو په وروستیو کې د نوي او معاصر ادب د ایجاد او رامنځته کېدو لارې چارې برابرې شوې دي.
د افغان ولس د تدریجي عامې ټولنیزې پرمختیا بهیر چې د وخت او حالاتو د اړتیاوو او عصري غوښتنو اغېزې یې په ژوره توګه منلې وې، په ادب کې یې انعکاس وموند او د نوي یا معاصر ادب د پیلامې او ادامې لاره یې پرانیستله همدغه مهال لیکوالانو او شاعرانو د خپلو ادبي اثارو په تخلیق کې د عامه پوهونې او خلکو د خپل پیغام د ښه او ژر رسونې داسې لارې چارې خپلې کړې، چې له کلاسیک ادب سره یې جوت توپیرونه لرل.
په دغه پړاو کې نثر لیکونکو د پخواني مسجع او متکلف نثر لیکلو پر خلاف عام کلیوالي ولسي اصطلاحات او محاورې په خپلو لیکلو نثرونو کې استعمال کړې او دا هلې ځلې یې کړې دي چې خپل آثار د خلکو د پوهونې لپاره د هغوی په ژبه ولیکي. د نثر دغه لیکنی روش او لارې تر هر څه دمخه په حکایتي یا کیسه ییزو آثارو کې ځان راڅرګند کړ او په تدریج سره په نثر کې د هنریت تت څرکونه راجوت شوي دي. د دغه ډول نثر لومړنۍ بېلګې مونږ د نورمحمد نوري افغاني په اثر ((غنچه روه)) کې چې په ۱۲۸۰هجري قمري کال یې بشپړ کړی دی، لیدلی شو. د همدغې پړاو یو بل لیکوال د هشنغر د تنګي اوسېدونکی مولوي احمد (۱۲۶۱ _ ۱۳۰۰هـ.ق.) چې په منثورو آثارو کې یې د آدم خان درخانۍ کیسه (۱۸۷۲م. چاپ) ګنج پښتو (۱۸۷۲چاپ) او د تاریخ فرشته ژباړه د ((تاریخ سلطان محمود)) په نامه په ۱۲۸۹هـ.ق. کال ترسره شوې ده، ګنج پښتو او آدم خان درخانۍ چې کیسه ییز آثار دي، مونږ پکې د هنري نثر د پیلامې لومړني څرکونه وینو
په دې لړ کې د اکبر پورې د قاضي میر احمد شاه رضواني (۱۲۷۶ _ ۱۳۵۳هـ.ق.) نوم هم د یادونې وړ دی، له نوموړي څخه په لس ګونو آثار راپاتې دي چې په هغو کې ((شکرستان افغاني)) (۱۹۰۵م.) کال چاپ او ((بهارستان افغاني)) (۱۸۹۸م.) کال چاپ دبېلګې په توګه یادوو چې د لیکوال ځینې داسې لیکلې نثرونه هم پکې خوندي دي چې د هنري نثر لومړني څرکونه په کې وینو. په همدغو وختونو کې د مشهور ختیځ پوه هانري جارج راورټي (۱۸۵۲ _ ۱۹۰۶م.) نوم هم د یادونې وړ دی، چې د (لقمان حکیم) کیسې یې په پښتو ژباړلې، په ۱۸۷۰م. کال په لندن کې چاپ شوی او هم یې د خپل مشهور اثر پښتو ګرامر په پای کې څلور داسې حکایتونه شته چې د معاصر نثر د بېلګو په توګه یې

یادولی شو. وروسته بیا په پښتونخوا کې په اوسني مفهوم د هنري نثر بنسټګر سیدراحت زاخلـــي (۱۸۸۴ _ ۱۹۶۳م.) دی، چې خپل قلمي ځواک يې د ادبي نثرونو د بېلا بېلو ادبي ژانرونو په ليکنه کې آزمويلی او د لنډې کيسې، ناول، نکل، ادبي ټوټې او طنز ليکنې د لومړني بنسټګر وياړ ور په برخه دی. همدارنګه د منشي احمدجان (۱۳۰۰ _ ۱۳۷۰هـــ.ق.) نوم هم په دغه لړ کې د يادونې وړ دی، چې په ((هغه دغه)) او د ((قصه خانې ګپ)) آثارو کې يې د هنري نثرونو پـــه زړه پورې بېلګې موندلی شو. همدارنګه د قاضي رحيم الله نوم د هنري نثر د ليکوالو په ډله کې د يـــادونې وړ دی، چـــې پـــه ((ګنجينه افغاني)) کې ځينې پښتو نثرونه او ((نوې روشنۍ)) (پښتو ډرامه) يې د هنري نثر بېلګې دي.

په افغانستان کې د مولوي صالح محمد کندهاري (۱۲۶۹ _ ۱۳۳۹هـــ.ش.) په آثارو کې د هنري نثر ځينـــې لـــومړني ځرکونه وينو او د بنسټګر په توګه د اروابناد پوهاند عبدالحی حبيبي نوم د يادونې وړ دی چې لومړی ځل يې پـــه طلـــوع افغان اخبار کې د هنري نثر ځينې ژانرونه، لکه لنډه کيسه، ادبي ټوټه، طنز او نور خپاره کړي دي.

## په پښتو ادب کې د هنري نثر دوديز ډولونه (ژانرونه)

هنري ادبي نثر په معاصر نړيوال ادب کې د پيدايښت له لومړيو تر ننه د ودې او پرمختيا پړاوونه وهلي او بېلا بېل ژانرونه په کې رامنځته شوي، وخت په وخت په کې ليکوالو نوې تجربې کړې او کوي يې او ښايي په راتلونکي کې نـــور نـــوي ژانرونه هم رامنځته شي. اوس هم ښايي په نړيوال ادب، په ځانګړې توګه د نړۍ په پرمختللیو ژبو کې داسې نـــوي ادبـــي ژانرونه وي چې خپل بېل نومونه او رنګونه به لري او زموږ ژبې او ادب ته به يې تر اوسه لاره نه وي موندلې، دلته مـــوږ د هغو ادبي ژانرونو نومونه اخلو، چې په پښتو ژبه او ادبياتو کې دود دي.

۱_ لنډه کيسه ۲_ ناول ۳_ رومان ۴_ ډرامه ۵_ طنز ۶_ ادبي ټوټه
۷_ ادبي ليکونه ۸_ ادبي راپورژتاژ ۹_ ادبي يونليک (سفرنامه) ۱۰_ ادبي ځان پېښنې(خاطرې)
۱۱_ ادبي ژوند ليک (بيوګرافي) ۱۲_ نکل ۱۴_ فلمنامه يا فلمي سناريو ۱۵_ ننـــدارليک (نمايـــشنامه)
شامل دي.

**اخځليکونه:**

_ د نثري ادب ډولونه (ادبي ژانرونه)، څېړنوال سيد محی الدين هاشمي

## دوه ویشتم لوست

**د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه**

| وخت | د مطلبونو شرحه | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|
| | محاوره (د انګلیسي ژبې د زده کړې د کورسونو په هکله خبرې اترې) | د لوست موضوع |
| | د لوست په پای کې به زده کوونکي وکولای شي، چې لاندې موخې ترلاسه کړي<br>ـ متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>ـ په متن کې راغلې کلمې او الفاظ به معنا او په جملو کې به یې وکارولی شي.<br>ـ د ژبو د زده کولو په ارزښت او مفهوم به پوه شي.<br>ـ د بهرنیو ژبو له زده کولو سره به یې مینه پیدا او د خبرو کولو قوه به یې پیاوړې شي.<br>ـ د ژبو زده کولو اړتیا به احساس کړي.<br>ـ د متن په مفهوم باندې به خبرې وکړای شي.<br>ـ د ښې وینا کولو وړتیا به پیدا کړي.<br>ـ د متن د پای فعالیتونه به په یوازې توګه ترسره کړای شي. | د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي )موخې |
| | لوستل، لیکل، اوربدل، پوښتنې او ځوابونه، یو کسیز کار، ډله ییز کار | د تدریس لارې |
| | درسي کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر، قلم | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي |
| | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د څارنې په وسیله ارزونه او د یادداشت کتابچه | د ارزونې لارې |
| ۴ دقیقې | سلام او ستړي مه شي، حاضري اخیستل، د کورنۍ دندې کتنه او د تېر لوست څخه یادونه | د زده کړې او تدریس فعالیتونه |
| ۶ دقیقې | ښوونکی دې لاندې هڅوونکې پوښتنې له زده کوونکو څخه وپوښتي او هم کولای شي چې دې ته ورته نورې پوښتنې له زده کوونکو څخه وپوښتي.<br>ـ د بهرنیو ژبو له زده کولو څخه موږ څه ګټې ترلاسه کولای شو. | د انګېزې رامنځته کول |

| ۳۵ دقیقې | د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| ـ زده کوونکي د ښوونکي پوښتنوته مناسب ځوابونه وایي او د ژبې د زده کړې په اړتیاوو څرګندونې کوي.<br>ـ زده کوونکي خپلو کتابونو ته ګوري، ستونزمنې کلمې په نښه کوي او د ښوونکي خبرو ته غوږ نیسي. | | ـ ښوونکی دې دپښتو ژبې د زده کړې په اړتیا وو له زده کوونکو څخه ازادې پوښتنې وکړي.<br>- ښوونکی دې یو ځل خپله متن په مناسب او لوړ آواز ولولي، ستونزمنې کلمې دې ورته معنا کړي او ځای ځای دې د ژبو د زده کړې په ګټوو رڼا واچوي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته دنده وسپاري چې متن په چوپه |

| | |
|---|---|
| خوله ولولي، په هغو کلمو چې نه وي پوه شوي له ښوونکی څخه دې و پوښتي. | ــ زده کوونکي متن په چوپه خوله لولي او په هغو کلمو چې نه دی پوه شوي د ښوونکي له خوابې ځوابونه اوري او په خپلو کتابچو کې يې ليکي. |
| ــ ښوونکی دې دوه دوه تنه زده کوونکو ته وخت ورکړي چې متن ولولي او دا لړۍ دې په ټولو ټولګيوالو باندې ترسره کړي.<br>ــ ښوونکی دې څو تنو زده کوونکو ته وو ايي، چې دوه دوه تنه د ټولګي مخې ته راشي، يو دې د جمال او بل دې د مېړوند د خبرو تمثيل وکړي.<br>ــ ښوونکی دې له څو تنو زده کوونکو څخه وغواړي، چې د ټولګي مخې ته راشي او د لوست مفهوم دې په خپله ژبه نورو ټولګيو الو ته وو ايي. | ــ زده کوونکي په خپل وار سره متن لولي او هڅه کوي په لوستلو کې خپله وړتيا وينبي.<br>ــ زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې سره سم عمل کوي او د خبرو تمثيل ترسره کوي.<br>ــ زده کوونکي په خپل وار د ټولګي مخې ته راځي او د لوست مفهوم بيانوي. او زده کوونکي هڅه کوي چې د تلويزيون د وياند په توګه خبرې وکړي.<br>ــ زده کوونکي فعاليت ترسره کوي او پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| ــ ښوونکی دې د کتاب پنځم فعاليت په زده کوونکو د پوښتنو په بڼه ترسره کړي.دسوال او ځواب فعاليت په تر سره کولو سره دې د زده کوونکو د خبرو کولو مهارت پياوړی کړي.<br>ــ ښوونکی دې دوه تنه زده کوونکي په خپل وار د ټولګي مخې ته راوغواړي چې د بهرنيو ژبو د زده کړې په اړه يوه يوه دقيقه خبرې وکړي.<br>ــ ښوونکی دې يو ځل بيا هم د متن لنډيز تکرارکړي او زده کوونکو ته دې دلوست اصلي پيغام وو ايي.<br>ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته دنده ورکړي چې د ډېرو ژبو د زده کولو په اړه څو کرښې مقاله د کورنۍ دندې په توګه په کورونو کې وليکي او بله ورځ دې يې په ټولګي کې ولولي. | ــ زده کوونکي د تختې مخې ته راځي او يوه يوه دقيقه خبرې کوي.<br>– زده کوونکي ژوره پاملرنه کوي او دلوست پيغام پخپلو کتابچو کې ليکي.<br>ــ زده کوونکي له لارښوونې سره سم د کورنۍ دندې موضوع ليکي او په کورونو کې ورباندې کارکوي. |

**اضافي معلومات**

**محاوره په لغت کې خبرو اترو ته وايي**

محاوره يا خبرې اترې د يو قوم، دود او دستور، کړه وړه ذهن او فکر انځوروي. که غواړو چې د يو قوم فرهنګ، دود او دستور مطالعه کړو نو په کارده چې د هغه قوم د ادب د مطالعې تر څنګه محاورې او متلونه هم مطالعه کړو. نو ددې کار لپاره بايد مورډ ژبه زده کړو هره ژبه چې وي. مهمه داده چې دهغې ژبې د زده کړې لپاره له يوبل سره محاوره وکړو، تر څو د ژبې ويلو مهارت مو پياو ړی شي، د ژبې په زده کړه کې چې هرڅومره محاوره زياته تر سره شي په هماغه اندازه ژبه ژر او ښه زده کيږي. د محاورې طرز او روشونه زيات دی. په دوه کسيزه توګه، له يوبل سره محاوره، په ځانګړي ډول د يوې مشخصې موضوع په اړه خبرې اترې اوداسې نور. په محاوره کې بايد له بېلوبيلو طريقو څخه سمه ګټه واخيستل شي تر څو د محاوره کوونکي مهارت پياوړی شي. بله مهمه خبره داده چې په محاوره کې بايد هڅه وشي تر څو د بېلابېلو موضوع ګانو په اړه محاوره ترسره شي چې له يوې خوا مو محاوره ښه شي او له بلې خوا مو د معلوماتو کچه لوړه شي.

وايي که د چا يوه ژبه زده وي يو سړی دی، که دوي ژبې يي زده وي دوه سړي دي کله چې انسان غواړي له خپلې مورنۍ ژبې سربېره نورې ژبې هم زده کړي له هر څه د مخه ورته په هغه ژبه کې محاوره يا خبرې اترې پکار دي ځکه چې د محاورې يا خبرو اترو په واسطه هر سړی خپله موخه، نظر او غوښتنې مقابل لورې ته څرګندوي او هغه پرې پوهولی شي. نو له دې امله ضروره ده چې نورې ژبې زده کړو او په ورځنې ژوند کې ورڅخه کارواخلو چې ځان خپلې موخې ته ورسو او مقابل لوری په خپل ذهني تصوير و پوهوو.

په خبرو اترو انسان نه يوازې يوبل پوهوي بلکې، د کلمو سم تلفظ او معنا هم زده کوي..

نو ښاغلي ښوونکي ته پکارده چې د پښتو ژبې په درسي ساعت کې په زده کوونکو باندې د بېلابېلو موضوعګانو په هکله له دوی سره محاوره وکړي. زده کوونکو ته دې وخت ورکړي چې په يوازې او يادوه کسيزه توګه د ټولګي په مخکې محاوره وکړي. تر څو د خبرو کولو مهارت يې پياوړی شي. ښوونکی دې د محاورې په بهير کې د زده کوونکو خبرو اترو ته دقت وکړي. د هغوی خبرې دې واوري، لفظي او ګرامري خنډونه او ستونزې دې ورته روښانه کړي. د ځينو غلطو تلفظونو سمه بڼه دې ورته په خپله تلفظ کړي، زده کوونکي دې و هڅوي چې د وز ګارتياپه مهال کې له محاورې څخه ګټه واخلي، ترڅو په خبرو اترو کې له ستونزو سره مخامخ نشي.

**اخځليکونه**

املاء او انشاء ليکوال: ګل پاچا الفت

## درویشتم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | فکر او عمل | |
| د زده کړې (پوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې: | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي.<br>ـ د فکر او عمل په لغوي معناوو به وپوهېږي.<br>ـ د فکر او عمل د متن په اصلي مفهوم به پوه شي.<br>ـ متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>ـ د نوو لغتونو په معنا او مفهوم به پوه شي.<br>ـ پوښتنو ته به مناسب ځوابونه ورکړای شي.<br>ـ زده کوونکي به وکولای شي، چې د متن د موضوع په اړه په پښتو ژبه خبرې وکړي. | |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، اورېدل، پوښتنې او ځوابونه، یو کسیز کار او ډله ییز کار | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | درسي کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر، تخته پاک، د امکان په صورت کې په یو چارټ کې د ځینو پوهانو پخې خبرې، چې د فکر او عمل په اړه یې ویلی وي. | |
| د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، د څارنې په وسیله ارزونه او د یادداشت کتابچه | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام او احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیمول، حاضري اخیستل، د تېر لوست څخه یادونه او د کورنۍ دندې کتنه | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکی دې نوی لوست په لاندې څو پوښتنو پیل او دې ته ورته نورې پوښتنې هم کولای شي چې له زده کوونکو څخه وکړي:<br>ـ آیا د فکر په هکله څه ویلی شئ؟ د فکر لغوي معنا به څه وي؟<br>ـ فکر او عمل څه اړیکې سره لري؟<br>ـ د یوه کار د کړنې لپاره فکر څومره ضروري دی؟ | ۶ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| ـ ښوونکی دې د لوست له ورودي برخې څخه د فکر او عمل په اړه له زده کوونکو څخه څو انګېزه لرونکې پوښتنې کوي او د هغوی ځوابونه دې په دقت سره واوري.<br>ـ ښوونکی دې د فکر او عمل معنا او مفهوم په اړه له زده کوونکو سره خپل نظریات او معلومات شریک کړي او له یو | ـ زده کوونکي هر یو پوښتنو ته مناسب ځوابونه ورکوي، چې په دې توګه کمزوري زده کوونکي هم د پوښتنو د ځواب په اړه معلومات ترلاسه کوي.<br>ـ زده کوونکي د فکر اوعمل د معنا او مفهوم په اړه هر یو خپل مخکېني معلومات مطرح کوي، زده | |

| | |
|---|---|
| بل سره د فکر او عمل د اړیکو په هکله خبرې اترې وکړي، وروسته دې بیا د لوست عنوان د تختې پر مخ ولیکي. | کوونکي خپل نظریات د ښوونکي له نظریاتو سره شریکوي او د فکر اوعمل په معنا او مفهوم ځانونه پوهوي. |
| ـ ښوونکی دې د متن ټاکلې برخه په مناسب غږ ولولي. | ـ زده کوونکي متن ته په دقت ګوري او غوږ نیسي. |
| ـ ښوونکی دې په څو تنو زده کوونکو د متن یو یو پراګراف ولولي او د متن د لوستلو په لارو چارو دې وپوهوي. | ـ زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونو سره سم یو یو پراګراف داسې لولي، لکه د تلویزیون یو ویاند چې یوه موضوع لولي، زده کوونکي هڅه کوي ترڅو په لوستلو کې ونډه واخلي او په ځانونو کې د ویاندۍ وړتیا وروزي او هم په پښتو ژبه روانې خبرې وکړي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړي چې د متن ټاکلې برخه له ځان سره په چوپه خوله ولولي او هغه کلمې دې په نښه کړي کومې چې په معنا یې نه پوهېږي. | ـ زده کوونکي متن له ځان سره لولي او ستونزمنې کلمې په نښه کوي. |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه وغواړي چې هر یو دې په وار سره خپلې په نښه شوې کلمې د تختې پر مخ ولیکي او بیا دې د زده کوونکو په واسطه هغه معنا او پر تختې ولیکي او د نه پوهېدو په صورت کې دې ښوونکی پوره مرسته وکړي. | ـ زده کوونکي په وار سره نښه شوې کلمې وايي او ښوونکی یې پر تخته لیکي او بیا یې بل زده کوونکی معنا کوي. |
| ـ ښوونکی دې د متن (فکر او عمل) په اصلي مفهوم څرګندونې وکړي. | ـ زده کوونکي د ښوونکي څرګندونو ته په پوره دقت سره غوږ نیسي. |
| ـ ښوونکی دې له زده کوونکو څخه و غواړي چې د متن په مفهوم خبرې وکړي. | ـ څو زده کوونکي په خپله خوښه په وار سره د متن په اصلي مفهوم خبرې کوي. |
| ـ ښوونکی دې د متن لوستل شوې برخه په څو پوښتنو سره ارزیابي کړي چې د زده کوونکو په درېیم فعالیت کې په پام کې نیول شوي دي. | ـ زده کوونکي پوښتنو ته مناسب ځوابونه وايي او له متن څخه د زده کړې ډاډ ترلاسه کوي. |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکوته په لومړني او دویم درسي ساعت کې په خپله خوښه او په درېیمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده وروسپاري او په بله ورځ دې وګوري. | ـ زده کوونکي سپارل شوې کورنۍ دنده په خپلو کتابچو کې اخلي په کورنوکې یې بشپړوي او په بل درسي ساعت کې یې راوړي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

**فکر:** عقل، فهم

**کار:** د کسب، شغل، خدمت په معنا وو دی.

کار د تولید د عمده عواملو څخه یو عامل دی او دې ته وايي چې دماغي یا لاسي قوه استعمال شي او په بدل کې یې مزد، معاش او یا حق الزحمه ترلاسه شي.

(تله) یون

(تله) د تللو آله هغه آله چې هرشی ورباندې تلل کېږي: د میزان میاشت هم ده.

(تله) جمع یې تلی، د پښې لاندنۍ برخه چې له ځمکې سره نښلي

**اضافي معلومات**

**د اروابناد صديق الله رښتين د ژوند او علمي خدمتونو په اړه لنډ معلومات**

اروښاد رښتين د پښتو ژبې او ادبياتو يو مسلکي، پياوړی او پوخ ليکوال او ژبپوه دی.

ښاغلی رښتين د مولوي تاج محمد خان زوی ۱۳۴۰هـ.ق. _ ۱۲۹۸هـ.ش. کال د مومندو په سره کمر کې زېږېدلی دی. لومړنی زده کړې يې په خپلې علمي کورنۍ کې کړې دي او بيا نورې زده کړې يې د ننګرهار د هډې په نجم المدارس او د کابل په عربي دارالعلوم کې سرته رسولې دي.

ښاغلی رښتين په ابتداء کې شعرونه هم ويل، خو وروسته يې د نثر خوا ته مخه کړې او د پښتو ژبې د علمي کولو لپاره په دې لار کې د ځان ستړيا غوره بللې ده.

ده په سختو شرايطو کې په ۱۳۲۱لمريز کال په ګرديز کې د (وړانګې) او په ۱۳۲۶لمريز کال په فراه ولايت کې د (سيستان) د اخبارونو لومړنۍ ګڼې راويستلې او هغلته يې د لومړي ځل لپاره چاپخانې په کار اچولې دي. ده څه موده د (هېواد) اخبار او د کابل مجله هم چلولې ده.

رښتين سربېره په مطبوعاتي، ادبي، ژبني ګرامري، تاريخي او نورو علمي ليکنو ډېر نوي ليکوالان او زلميان له ليکوالۍ سره بلد کړي دي.

رښتين يوازې تشه جذباتي او احساساتي ليکنه نه خوښوله، بلکې هغه غوښتل چې د علم، منطق، تاريخ په رڼا کې پښتو ليکوالي پر مخ ولاړه شي او ژبه په علمي سودمنو اثرونو او خوږې خوندورې پښتو ښايسته او ښاپايه شي.

د رښتين په نثري ليکنو کې اصلاحي فکر او تنقيد هم شته.

د رښتين د ليکنو په برخه کې ډېرو داخلي او بهرنيو پوهانو خپلې نظريې څرګندې کړې دي چې دلته به د دوو تنو (کورنيو او بهرنيو) پوهانو او استاذانو نظر يې رانقل کړو.

ښاغلي ترې په خپل مضمون (معاصر افغاني ادب) کې داسې يو نظر څرګند کړی دی:

((رښتين د خپل وخت نوميالی ليکوال او قوي نثر ليکوونکی دی چې اثار يې په متفرق او مستقل ډول سره د هېواد په مطبوعاتو کې خپاره شوي دي. نظم او نثر دواړه لري، مګر د نثر خوا يې له نظم څخه ډېره قوي او برجسته ده، حتٰی د خپلې دورې يوازينی ليکوال دی، چې د نثر خوا يې څو څو ځله تر نظم قوي ښکاري. د ده د نثر ډېره ستره مخيزه دا ده چې د ده الفاظ تل قالبي برېښي. د نظمونو مجموعه يې خپره شوې، خو په نثر کې يې خپلواک آثار زيات چاپ شوي دي.

زما په عقيده (د هند سفر) په خپله دوره کې د نثر له مخې د پښتو يو قيمتي اثر دی.

دی ځينې ترجمې هم لري چې په دې لړ کې يې (د مينې هنداره) ډېر ښه مستقل اثر دی.))

رښتين د پښتو فرهنګ په پرمختيا کې ډېرې هلې ځلې کړي او ډېر کتابونه او مقالې يې ليکلي دي چې دلته به يې په ترتيب سره رانقل کړو.

۱_ پښتانه شعراء، دويم ټوک. ۲_ پښتو کلی، شپږم ټوک. ۳_ پښتو لومړی ليار ښوونکی. ۴_ د پښتو ادب تاريخ. ۵_ د پښتو اشتقاقونه او ترکيبونه. ٦_ د پښتو لوی ګرامر (په پارسي ژبه). ۷_ نوی ژوند (د پښتونستان په باب). ۸_ د پښتو مجاهدې (تاريخي) اثر دی. ۹_ د دولسم ټولګي د پښتو قرائت. ۱۰_ پښتو عروض. ۱۱_ د پښتونستان پېښې.

۱۲_ د پښتو ادبيات. ۱۳_ پښتو نثر.

۱۴_ نوميالي شعراء. ۱۵_ د پښتو نثر هنداره. ۱٦_ د پښتو شعرونو ډولونه.

**اخځليکونه**

د پښتو ادبياتو تاريخ اوسنۍ دوره، ليکوال: پوهاند ډاکټر زيورالدين زيور، ۱۳۸۵لمريز کال.

ښاغلي ښوونکی کولای شي چې د (فکر او عمل) د متن په اړوند د ښاغلي رښتين د ژوند پلوشې اثر وګوري او خپل معلومات بډای کړي.

## څلورویشتم لوست

**د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه**

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | د پاچا خان تعلیمي لاربښوونې | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ خان عبدالغفار خان به وپېژني.<br>ـ د ده ملي شخصیت په اړه به معلومات ترلاسه کړي.<br>ـ د ده د سیاسي او ټولنیز ژوند په اړه به نورو ته معلومات ورکړای شي.<br>ـ متن به سم ولوستلای شي.<br>ـ د نوو لغتونو په معنا او مفهوم به پوه شي او په خپله ژبه به یې وویلای شي.<br>ـ د لوست موضوع به په لنډه توګه بیان کړای شي.<br>ـ په ډله ییزو فعالیتونو کې به په مینه برخه واخلي. | |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل په دوه کسیزه توګه پوښتنه او ځواب، لوستل، پوښتنې او ځوابونه او ډله ییز کار | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | کتاب، کتابچه، تخته، تخته پاک، تباشیر، مارکر او د یادداشت کتابچه | |
| د ارزونې لارې | د کتاب له مخې د لوستلو ارزونه، د لیکلو ارزونه، د پوښتنو او ځوابونو په وسیله ارزونه او خبرې کول | |
| د زده کړې او تدریس فعالیتونه | سلام او احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، د حاضري اخیستل، د کورنۍ دندې کتنه او د تېر لوست څخه یادونه | ۴ دقیقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښاغلی ښوونکی دې لوست په لاندې پوښتنو پیل کړي او دې ته ورته نورې پوښتنې هم کولای شي، چې له زده کوونکو څخه یې مطرح کړي.<br>ـ خان عبدالغفار خان پېژنئ؟<br>ـ څوک کولای شي چې د باچا خان په اړه څه معلومات وړاندې کړي؟ | ٦ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| ـ ښوونکی دې د لوست د ورودي برخې له مخې د باچا خان د تعلیمي لاربښوونو په اړه له زده کوونکو سره خبرې وکړي. د هغه د ملي مبارزو او د خپل ولس د خپلواکۍ په هکله به په لنډه توګه رڼا و اچوي.<br>ـ ښوونکی دې په مناسب غږ متن و لولي او په لوستلو کې دې د زده کوونکو څارنه وکړي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکي وګوماري، ترڅو متن په چوپه | ـ زده کوونکي د ښوونکي څرګندونو ته غوږ نیسي. د پاچا خان د تعلیمي لاربښوونو، ملي او سیاسي مبارزو په اړه معلومات ترلاسه کوي.<br>ـ زده کوونکي متن ته غوږ نیسي.<br>ـ زده کوونکي متن په چوپه خوله لولي او ستونزمنې کلمې په نښه کوي. | |

| | |
|---|---|
| خوله ولولي.<br><br>ـ ښوونکی دې په څو تنو زده کوونکو د متن یو، یو پراګراف ولولي او د لوستلو په مهارت دې وپوهوي.<br>– ښوونکی دې له څوزده کوونکو څخه غوښتنه وکړي چې د پاچا خان د ښوونیزو او روزنیزو لاربښوونو او خدمتونو په اړه څو دقیقې خبرې وکړي. ښوونکی غواړي چې زده کوونکي د هرې موضوع له لارې پښتو ژبه زده کړي او پرې خبرې وکړای شي.<br>ـ ښوونکی دې د ستونزمنو کلمو پوښتنه وکړي او زده کوونکي دې په وار سره ستونزمنې کلمې ولولي او ښوونکی دې د تختې پر مخ ولیکي، معنا دې لومړی له نورو زده کوونکو وپوښتي، که زده کوونکو ځوابونه وویلای شول ښه او که د کلمو په معنا پوه نه وو خپله دې معنا او پر تختې و لیکي.<br>ـ ښوونکی دې له څو تنو زده کوونکو څخه وغواړي چې تختې ته راشي او معنا شوو کلمو ته یوه مناسبه جمله جوړه او ودې لیکي.<br>ـ ښوونکی دې د لوست لنډیز تشریح کړي.<br>ـ ښوونکی دې د لوست ارزونه د شپږم فعالیت له مخې ترسره کړي او د زده کوونکو د پوهاوي کچه دې ځانته معلومه کړي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکوته په لومړي او دویم درسي ساعت کې په خپله خوښه او په دریمه ورځ د لوست د پای کورنۍ دنده وروسپاري او په بله ورځ دې وګوري او اصلاح دې کړي. | ـ زده کوونکي په وار سره د متن یو یو پراګراف لولي او د لوستلو په لارو چارو ځانونه پوهوي،<br>ـ زده کوونکي په وار سره د ټولګي مخې ته راځي او د پاچا خان د ښوونیز او روزنیز خدمتونو او لاربښوونو په اړه خپل معلومات وړاندې کوي چې په دې توګه د خبرو کولو مهارت یې پیاوړی شي.<br>ـ زده کوونکي په وار سره په نښه شوې کلمې لولي او د ښوونکي لیکلو ته ځیر کېږي.<br><br>ـ زده کوونکي په وار سره یوې معنا شوې کلمې ته جمله جوړوي او پر تختې یې لیکي.<br>ـ زده کوونکي د لوست لنډیز ته غوږ نیسي.<br>ـ زده کوونکي د لوست د ارزیابۍ پوښتنو ته په ځواب ویلو کې برخه اخلي.<br>ـ زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع په کتابچو کې لیکی او په کورونو کې پرې کارکوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

ښکېلاک: استعمار

شکور: ټوکری

**اضافي معلومات**

د خان عبدالغفار خان کورنۍ

عبدالغفار خان په خپل چاپ شوي کتاب کې د خپلې کورنۍ د پېژندلو په اړه داسې لیکي: زما د پلار نوم بهرام خان و، د کلي خان و او په مشرخان مشهور و. دی د نورو خانانو په شان نه و، په کلي کې د ده په اندازې جایداد د چا نه و، خو دی داسې نه ښکاربده لکه خان، پوه او زیړ پښتون و، په چا یې زیاتی نه کولو او نه یې مظلومان د بل چا زور زیاتي ته پرېښودل.

که له ده سره به چا زیاتی وکړو هغه به یې صبراو برداشت کولو او د بدل جذبه یې په زړه کې نه ساتله. ورونو او

تربورانو ورسره ډېر زياتی کړی و. د ده وس کېده چي بدل ورنه واخلي، خو د بدل په ځای به يي وبخښل احسان او ښېګړه به يي ورسره کوله. لمونځ کوونکی، پرهېز ګار او سوله خوښونکی سړی و، د صبر او زغم څښتن و. د نيکه نوم يي سيف الله خان و، کله چي فرنګيانو د بونير د نيولو په غرض په بونير بريد وکړ او د سور کاوی غزا وه، نور خانان د فرنګي ملګري وو او سيف الله خان بابا د قام مرستي له ورغی. همدارنګه زما غور نيکه عبيدالله خان بابا آزاد خياله، پياوړی او منلی مشر و.

## د خان عبدالغفار خان لومړنۍ زده کړې

عبدالغفار خان د خپلو زده کړو په اړه داسي ليکي:

زما پلار سره د دې چي متقي مسلمان و، خو روشنفکره سړی و. او موږ دواړه وروڼه يي په ښوونځي کي داخل کړو. پلار مي زه او محبت خان چي زما د کشر تره زوی و د کلي په جومات کي د اسماعيل استاد سره سبق ته کېنولو. د اسماعيل استاد نه مي قرآن کريم ختم کړو، زموږ کلي کي يو لومړنی ښوونځی و، خو زما مشر ورور خان صاحب دغه وخت کي د پېښور په ښوونځي کي زده کړه کوله. زه هغه د زده کړې لپاره پېښور ته بوتلم او په هغه ښوونځي کي يي زه هم داخل کړم. له همد غه وخته په ده کي د انسانيت، ورورۍ، وطن دوستي او الله ﷻ د مخلوق د خدمت کولو جذبه پيداشوه او ددې جذ بې هڅوونکي خپل استادان بولي. د قوم او هېواد خدمت ته يي ملا وتړله او زده کړو لپاره مختلفو ښارونو او ښوونځيو ته ولاړه دخپل ولس د تعليم لپاره ۱۹۱۰ کال د مولوي عبدالعزيز خان په مرسته يوه مدرسه په اتمانزو کي جوړه کړه د خلکو پاملرنه يي د زده کړې او علم خواته را واړوله او د پښتنو په زړونو کي يي د علم د اړتيا احساس پيداکړو خلکو ځای پر ځای ډېرې مدرسې جوړې کړې اوپه ډېر شوق يي خپل بچي پکي داخل کړل، او د زده کړو بهير پکي ورځ په ورځ مخ په وړاندې روان وو.

د دير په سيمه کي اخوند زاده ګان او پرچګان اوسيدل او آباد خلک و. د دې خلکو په مرسته يي يوه ښه مدرسه جوړه کړه او دې مرستې ډېر ښه انتظام. وموند او په لږه موده کي يي د زده کوونکو شمير څلورسوه تنو ته ورسېده. بيا په ۱۹۲۱ کال کي د نورو دوستانو په مرسته د اغانثرو په سيمه کي د ازادسکول بنياد کېښوده، د مدرسې تر څنګه ده د پښتو د غلطو دودونو اصلاح کولو، تشددنه د منع کولو او د قومي ميني د پيداکولو په غرض د (اصلاح االافاغنه) په نامه يو انجمن جوړکړ چي ډېرو لويو کسانوپکي برخه درلوده کله چي خلکو زما په راتګ مينه اومحبت وښوده په اتمانزو کي يي يوه جلسه ونيوه او د ټول قوم له خوا زما د خدمتونو په وياړ يوه سپاس نامه راکړه چي د فخرافغان په لقب يي ووياړلم. مدرسې دا اراده وکړه چي ضرورېه يوه رساله په پښتو کي د خپل قوم د پوهولو، د دنيا حالاتو نه د خبرولو او خپلې خاورې ته د دوی پاملرنه رامنځ ته کړي او دا هڅه يي وکړه چي انجمن په خپله ژبه کي د بچو لپاره د ابتدايي تعليم انتظام او ترتيب وکړ. د ۱۹۲۸ کال د پښتون په نامه يوه رساله په پښتو ژبه اتمانزو کي منځ ته راوړه چي دا پښتون اخبار کابل ته هم رسيده او د افغانستان په خلکوکي هم پښتو ژبې ته مينه پيدا شوه او حتا په امان الله خان يي ډېر اثر وکړ او دی وهڅول شو چي خلک بايد پښتو زده کړي چي په دې توګه ډېر ژر پښتو ژبه تعليمي او سرکاري ژبه وګرځيده او د پښتون غږ په نامه يوه بله رساله هم دلته را منځ ته شوه.

**اخځليک**

ــ زما ژوند او جدو جهد ليکوال خان عبدالغفارخان

## پنځه ویشتم لوست

**د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه**

| وخت | د مطلبونو شرحه | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|
| | متلونه | د لوست موضوع |
| | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي.<br>ــ متل به وپېژني.<br>ــ د متلونو دلوست په معنا او مفهوم به پوه شي.<br>ــ د متلونو د کارولو ځایونه به وپېژني.<br>ــ متن به سم او روان ولولي.<br>د متلونو په ارزښت به پوه شي او نورو ته به د متلونو د کارولو پــه موخــو معلومات ورکړي.<br>ــ د پښتو ژبې د خبرو کولو مهارت به یې پیا وړي شي؟<br>ــ دمتن د پای فعالیتونه به په یوازې ډول تر سره کړای شي. | د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې |
| | لوستل، لیکل، د محاورې په ډول، پوښتنه او ځواب او خبرې کول | د تدریس لارې |
| | په یو چارټ کې د څو پښتو متلونو لیکل او ټولګی ته یــې راوړل، کتــاب، کتابچه، تخته، تباشیر، تحته پاک، مارکر او نور. | د تــدریس وســیلې او مرستندویه توکي |
| | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، پوښتنې اود ځواب ارزونه | د ارزونې لا رې |
| ۴ دقیقې | سلام وراندې کول، د حال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیــستل، د کــورنۍ دندې کتنه او د تیر لوست سره د نوي لوست تړاو. | د زده کړې او تــدریس فعالیتونه |
| ۶ دقیقې | ښوونکی دې نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړي:<br>۱ــ متل څه ته وایي او د دڅه لپاره ویل کېږي؟<br>۲ــ کله موهم په خپلو خبرو کې له کوم متل څخه کار اخیستي؟ | د انګېزې رامنځته کول |

| ۳۵ دقیقې | د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| | ــ زده کوونکي د ښوونکی له لارښوونې سره سم نــوی لوست په چوپه خوله لولي، ستونزمنې کلمې په نښه کوي او بیا یې معنا له ښوونکی څخه پوښتي.<br>ــ زده کوونکي متن ته پاملرنه کوي، لوستلو تــه ښــه غوږنیسی او د ستونزمنو کلمو په معنا ځانونه پوهوي.<br><br>ــ دوه تنه زده کوونکي د ښوونکي له لارښوونې ســره سم د تختې مخې ته راځي او نومړی فعالیــت ترســره کوي. | ــ ښوونکی دې زده کوونکو ته لارښوونه وکړی چې د څــو شېبو له پاره د نوی لوست ټاکلې برخه به چوپه خوله له ځــان سره ولولي او ستونزمنې کلمې دې په نښه کړي.<br>ــ ښوونکی دې د متن ټاکلې برخه په لــوړ او مناســب غــږ ولولي او ستونزمن لغات دې پر تختې ولیکي بیا دې معنا کړي او د لوست د هر متل په اړه دې څرګندونې وکړي.<br>ــ ښوونکی دې د کتاب د فعالیت له لار ښوونې سره سم دوه دوه زده کوونکی د ټولګي د تختې مخې ته را غواړي، یو زده کوونکی دې له متن څخه یو متل ولولي، بل زده کوونکی دې د نومړې متل د کارولو ځای په ګوته کړي او پر تختــې دې |

| | |
|---|---|
| ولیکي. د نیمګړتیا په صورت کې دې ښوونکي مرسته ورسره وکړي. | |
| ــ ښوونکی دې هڅه وکړي چې په زده کوونکو باندې متلونه له یاده وو ایي بیادې په خپلو کتابچو کې ولیکي. | ــ څو زده کوونکي په وار سره متلونه په یاد وایي او نور یې په کتابچو کې لیکي. |
| ــ ښوونکی دې لوستل شوی متن د څو پوښتنو په کولو سره وارزوي او خپل ډاډ دې تر لاسه کړي. | ــ زده کوونکي د ارزونې پوښتنو ته مناسب ځوابونه ورکوي. |
| ــ ښوونکی دې زده کوونکوته ددې لوست په لومړي او دویم ساعتونو کې په خپله خوښه او په دریمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده وروسپاري | ــ زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع ګانې په کتابچو کې لیکي اوپه کورونو کې یې ځوابونه بشپړوي. |

**اضافي معلومات**

## متلونه

د پښتو د شفاهي ادب یوه څانګه متلونه دي چې متلونه د یوې فکري ذخیرې په توګه له ډیرې پخوا څخه په ولسونو کی موجود دي او له یوه نسل څخه بل نسل ته لیږدیدلې دي او دعوامو د فلسفې مهمه برخه ده. هر متل که څه هم لنډه او ساده جمله ده خو حقیقت دادی چې په هر متل کی لوی حکمت پروت وي او دغه مقولې چی د تجربونه وروسته منځ ته راغلي او په عام، ساده او لنډ ډول په ټولنه کې خپرې شوي دي او د یوې زمانې د خلکو ذهني او فکر ي سویه، کړنې، ټولنیزې اړیکې، هوښیاري، د ژوند سطحه، کلتور او نور په ښه ډول ترې څرګندیږي. د پښتو د شفاهي ادب ددغې خوند ورې برخې (متلونه) درامنځ ته کېدو وخت او ویونکي معلوم نه دي، بلکې په هر وخت کې د نامعلومو کسانو له خوا ویل شوي دي .وروسته له یوه شخص څخه بل، اوله بل نه ، کور، کلي د کلي قوم او په پای کې ملت ته رسیدلي او په ټولنه کې عام شوي دي. د متلونو ویل په یوه زمانه، یوه سیمه او شخص پورې اړیکې نه شي پیداکولی، بلکې په هره زمانه کې د هرې سیمې د خلکو له خوا ویل شوي دي چې ځینې یې له منځه تللي او ځینې یې تر اوسه پورې د خلکو په سینو کې شته او دا هم نه شو ویلای چې وروسته تر دې به نور متلونه پیدا نه شي. له دې وروسته به هم د خلکو د تجربو له مخې متلونه منځ ته راشي چې د خپل ارزښت، اهمیت او سوچه توب نه وروسته به په ټولنه کې قبول او ومنل شي او د خلکو محاورې ته به لاره پیداکړي.

ځینې ډیر داسې متلونه شته چې په یوه سیمه کې وي، مګر په بله سیمه کې بیا هېڅ درک نه لري او ځینې بیا داسې متلونه هم شته چې په ټولو سیمو کې د خلکو تر منځ ویل کېږي.

د تاریخ په اوږدو کې چی هر څومره پیښې منځ ته راغلي په هماغه اندازه متلونه هم د تجربو نه وروسته را پیدا شوي دي، خپل اهمیت یې په ټولنه کې تثبیت کړی او د خلکو ترمنځ یی د ویلو سلسله پیل شوې ده، متلونه د نظم او نثر په چوکاټ کې ویل کېږي، خو زیاته برخه یې په نثر کې ده. منظوم متلونه تراوسه په منظمه توګه نه دي را ټول شوي، خو ښاغلي حبیب الله رفیع (د خلکو سندرې) په کتاب کې ددغه ډول متلونو (۴۲) نمونې خوندي کړیدي

## متلونه د پوهانو له نظره

ماکسیم ګورکي د متلونو په باب لیکي: «د متلونو په ساده الفاظو کې تر ټولولوی حکمت پروت دی، متلونه او سندرې تل لنډې وې، خو فکر او احساسات پکې د یوه کتاب په اندازه ځای شوي وي» په افغاني لیکوالو کې د متلونوپه باب ډیرو ښاغلو لیکوالوخپلې نظریې وړاندې کړې دي چې دلته به د عبدالحی «حبیبي» د نظریه راوړلو اکتفا وکړو، پوهاند «حبیبي» د متلونو په باب لیکي: «پښتو متلونه ډیر لوی مقصد په لنډو ویناوو کې ښکاره کوي او ګټل کېږي او په وینا

کې د استدلال لپاره راوړل کېږي. اوس چې مو د پښتو متلونو په باب ځینې خبرې لوستونکو ته وړاندې کـــړې. بهتـــره بولم چې د هغو هڅو او کارونو یوه یادونه هم وکړم چې د پښتني متلونو د راټولولو په برخه کې شوي دي.
د زمانې په تېرېدو سره ډېر زیات متلونه را پیدا شوي او ډېر یې له منځه تللي دي او هغه چې تر اوسه پورې د خلکو سره شته بیاهم دومره زیات دي چې راټولول او خوندي کول یې ډیر کار او د پنډو کتابونو لیکل غواړي. تراوسه پورې چـــې کوم کتابونه پدې برخه کې لیکل شوي د هغو متلونوپه نسبت چې په ټولنه کې شته ډیر لږدي.
دویم مستشرق مشهور فرانسوي پښتو پوه جیمزډار مستټر چې په خپل مشهور کتاب( د پښتو نخوا د شعرها روبهار )کـــې یې د پښتو متلونو(٦٠) نمونې خوندي کړې دي دریم سړی چې موږ یې باید د پښتو متلونو د ټولوونکي په توګه یادونـــه وکړو هغه کرنال سی– ای– بابل دی. ده په خپل کتاب  پښتو نکلونو کې د پښتو ډېر متلونه له انګریزي ژبـــاړې ســـره خوندي کړي دي. دغه کتاب دویم ځل په(١٩٣٨ ع) کال په پېښور کې د فقیرچند مهر له خوا چاپ شوی دی.

**اخځلیکونه**

ــ ګړنی ادب، لیکوال: عبدالکریم پتنګ

# شپږویشتم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| وخت | د مطلبونو شرحه | د مطلبونو سرلیکونه |
|---|---|---|
| | محاو ره (د هیواد لرغوني او تاریخي ځایونو په هکله) | د لوست موضوع |
| | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ د محاورې متن به سم او روان ولولي.<br>ـ د محاورې د لوست په مفهوم به پوه شي.<br>ـپه لوست کې به د پښتو لغتونو معنا زده کړي او په کتابچوکې به یې ولیکلای شي.<br>ـ د پښتو ژبې د ویلو مهارت به یې پیاوړي شي.<br>ـ د متن لنډیز به په خپله ژبه وویلای شي.<br>ـ د لوست د پای فعالیتونه به په یوازې ډول حل کړای شي. | د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې |
| | لوستل، لیکل، د محاورې په ډول پوښتې او ځوابونه او خبرې. | د تدریس لارې |
| | کتاب، کتابچه، تخته، تباشیر، تخته پاک او د لرغونې او تاریخي ځایونو په اړه انځورونه. | د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي |
| | شفاهي ارزونه، د لوستلو ارزونه، پوښتنې او ځواب ارزونه، د تحریري ارزونه او د خبرو اترو ارزونه. | د ارزونې لارې |
| ۴ دقیقې | سلام وړاندې کول، دحال احوال پوښتنه، د حاضرۍ اخیستل او د کورنۍ دندې کتنه. | د زده کړې او تدریس فعالیتونه |
| ۶ دقیقې | ښوونکی دې نوی لوست په لاندې څو پوښتنو پیل کړي.<br>ـ څوک کولای شي د خپل هېواد د څو لرغونو او تاریخی ځایونو نومونه واخلي؟<br>ـ آیا کولای شئ د څو مشهورو تاریخی ځایونو په اړه خبرې وکړئ؟ | د انګېزې رامنځته کول |

| ۳۵ دقیقې | د زده کوونکو فعالیتونه | د ښوونکي فعالیتونه |
|---|---|---|
| | ـ زده کوونکي په ځانګړې مینې سره د هڅوونکو پوښتنو په ځواب ویلو کې ونډه اخلي.<br>ـ زده کوونکي د ښوونکي د لار ښوونې سره سم، لوست په چوپه خوله لولي او ستونزمنې کلمې په نښه کوي.<br>ـ زده کوونکی هر یو په خپل وار سره په نښه شوې کلمې ښوونکي ته وایي او په پای کې د کلمو په معنا ځانونه پوهوي. | ـ ښوونکی دې لوست د څو هڅوونکو پوښتنو په کولو سره پیل کړي.<br>ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته لار ښوونه وکړي چې لوست په چوپه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې په نښه کړي.<br>ـ ښوونکی دې د ستونزمنو کلمو په اړه پوښتنې وکړي او هغه دې د تختې پر مخ ولیکي او معنا دې کړي .<br>ـ ښوونکی دې پر زده کوونکو باندې لوست په دوه تنو د |

| | |
|---|---|
| محاورې او ډیالوګ په توګه ولولي، او ښوونکی دې پاملرنه وکړي ترڅو د کلمو، جملو په لوستلو او خبرو کولو کې زده کوونکي خپله وړتیا وښيي او سمې خبرې وکړای شي. | ــ دوه تنه زده کوونکي د ښوونکي د سپارښتنې سره سم د لوست موضوع د ډیالوګ په توګه لولي. |
| ــ ښوونکي دې له څو زده کوونکو څخه وغواړي چې په وار سره د هېواد د لرغونو او تاریخي ځایونو په اړه معلومات وړاندې کړي. | ــ زده کوونکي په دغه فعالیت کې په مینه خپله ونډه څرګندوي. |
| ــ ښوونکی دې د پنځم فعالیت ګډې وډې جملې د تختې پرمخ ولیکي او له څو زده کوونکو څخه دې وغواړي چې په وار سره د هرې نا سمې جملې سمه بڼه ولیکي. | ــ څو زده کوونکي په وار سره د تختې مخې ته راځي او د یوې نا سمې جملې سمه بڼه د تختې پرمخ لیکي |
| ــ ښوونکی دې د لوستل شوي لوست لنډیز لومړی په خپله ووایي او بیا دې زده کوونکي ووایي. | ــ زده کوونکي د لوست لنډیز په خپله ژبه وایي. |
| ــ ښوونکی دې لوست په څو پوښتنو وارزوي. | – زده کوونکي پوښتنوته ځوابونه ورکوي. |
| – ښوونکی دې زده کوونکوته په لومړي او دویم درسي ساعتونو کې په خپله خوښه او په دریمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده ورکړي. | ــ زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوعګانې په کتابچو کې لیکي او هغه په کورونوکې بشپړوي. |

**اضافي معلومات**

## د بخدي کلا (ارګ)

د پښتو دایرة المعارف دویم ټوک د ۸۳۰ مخ په حواله وارا(ارګ) حصار، بالاحصار، او جګې کلا په مفهوم افاده شوی دی.

وارا چې د اریانا لومړنی پناه ځای او مرکز دی. د بخدي د کلا او ښار مفهوم څرګندوي چې دا ځای ارګ هم دی، او احمد علي کهزاد ددې کلا د بنسټ ایښودلو په هکله وایي:

په اریایي پخواني تاریخ کې په عام مفهوم او د اریایي (هندو ایراني) مهاجرت او مېشته کېدو په تاریخ کې په خاص مفهوم اود افغانستان د تاریخ څخه د مخه تاریخ کې په ځانګړي معنا ډېره مهمه د غور او څېړنې وړ یوه موضوع د ارګ (وارا) د ودانۍ څخه عبارت ده. وایي چې دلته یې په ارګ ژباړ لې ده. په نورو تعبیرونو باندې هم معنا او ژباړل شو ې ده، لکه چې د مخه ورته اشاره هم وشوه. وارا په مانۍ کلا، حصار، کلي، ښار، هستوګنځي ترجمه کېدای شي، لومړنی مقر دی چې یما د بلخي پیشداد یانو له کورنۍ څخه د هندو اریایانو لومړنی پادشاه په خپل ژوندکې د هغې ودانۍ په جوړولو کې خاصه پاملرنه وکړه.

یما پاچا لازمه وګڼله چې د ژمي د ستونزو او ناوړو شرایطو له کبله چې د ځان اونورو اریایانو لپاره یو پناه ځای جوړ کړي، نو یې د وارا د محوطې په جوړولو پیل وکړ چې پراخه دا منه یې درلود له او د هغې هر بازو د اس د یوې ځغا ستې سره برابرو.

زموږ د هېواد دغه نو میالی مؤرخ کهزاد د کلا او وارا د مشخصاتو او څرنګوالي په هکله وایي:

د اوستا په شهادت هغه وخت چې (یما) پاچا واکمنی ته ورسید د (اهورا مزدا) د امر له کبله یې د یوې پناه ځای په و دانولو لاس پورې کړ چې وارا نومېده، د وارا څخه موخه لکه چې د مخه ورته اشاره وشوه (پاچاهی کلا) یا (پاچاهي ارګ) و چې (یما) د بلخي پېشداد یانو د سلطنتي کورنۍ مشر(جمشید) د هغه د بنسټ تیږه په خپل لاس

کېښودله.

## د مندېش کلا

د مندیش استحکامي کلا د غور یوه پخه او ډېره جګه کلا ده چې د مندېش د غره په تروکې پرته ده او د ډ برلیک د لیکنې له مخې ددې کلا بنسټ ا پښودونکی بسطام و او د کلا د جوړښت څخه جوتېږي چې د هغې د ودانولو لپاره د هغې زمانې یو شمېرتکړه استادان ورته استخدام شوي وو.

د دې کلا په جوړښت کې د معمارۍ د وتلي سبک او ماهرانه فن څخه د یوه هنري ابتکار په تو ګه کار اخیستل شوی دی. دې کلا دولس برجونه درلودل او په هر یوه برج کې یې دېرش کړکۍ موجودې وې (٦ برجونه د ختیځ او شمال خواته او ۴ نور برجونه یې د لوېدیځ او سویل خواته) چې په هر یوه برج کې د اسمان رسم کښل شوی و، په داسې ترتیب سره چې هره ورځ لمر په ټا کلي درجه له یوې کړکۍ څخه راختو او په څرګند ډول یې ښودل چې دغه ورځ لمر په کومه درجه دی .

نو ویلای شو چې دا مانۍ او استحکامي کلا د امیر عباس بن شیش د زمانې د معمارۍ دساختمان له یادګارونو څخه ده که څه هم بنسټ اېښودونکی یې بسطام و.

د طبقات ناصري په روایت: مندېش یوه ډېره پخه، کلکه، مستحکمه او جګه کلاده کله چې سړی د آیاز له څنګه تېرېږي او ګوروالشت ته ورسي د کینې خوا له لارې له ورایه د مندېش کلا ښکار ي چې ډېره لوړه او له شمېره وتلې پوړۍ یې در لودلې او په ډېر زیار سره ورته سړی ختلای شي. تر نوموړي مؤلف وروسته عبدالحق ګردیزي هم دا کلا په (۲۴۰هـ) د مملکت له ډېرو پخو کلاګانو څخه شمېرلې ده. د پور تنیو لیکنو په اسناد جوتېږي چې مندیش نه یوازې له برمه ډکه پوځي کلا ده بلکې د غوریانو د یوه نامتو فرهنګي او سیاسي ښار او د یولوی غره نوم هم دی

یادونه ښاغلی ښوونکی دې د پښتو ژبې په زده کړه کې زیارو کارې چې په زده کوونکو باندې د تاریخي ځایونو په اړه محاوره تر سره کړي تر څو زده کوونکي په پښتو ژبه سمې او روانې خبرې وکړای شي.

**اخځلیکونه**

_ د افغانستان استحکامي کلاوې، حصار ونه او بالا حصارونه، لیکوال: پوهاند رازقي نړیوال.

# اووه ويشتم لوست

## د تدريس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرليکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | محاوره په هېواد کې د عصري او رسمي ښوونې او روزنې تاريخي بهير په هکله خبرې اترې | |
| د زده کــړې (پــوهنيزې، مهارتي او ذهنيتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي:<br>ـ د عصري ښوونې او روزنې په معنا او مفهوم به پوه شي.<br>ـ د ښوونې او روزنې د تاريخي بهير په هکله به لنډ معلومات تـر لاســه کړي.<br>ـ متن به سم او روان ولوستلای شي.<br>ـ د متن په اصلي مفهوم به خبرې وکړای شي او په پښتو ژبــه د خبــرو کولو مهارت به يې پيا وړی شي.<br>ـ د نوو لغتونو معنابه زده کړي او په کتابچو کې به يې وليکي.<br>ـ د لوست د پای فعاليتونه به په يوازې ډول تر سره کړای شي. | |
| د تدريس لارې | لوستل، ليکل، سوال او ځواب، په يو کسيزه توګه کار، ډلــه ييزکــار او خبرې کول. | |
| د تــــدريس وســـــيلې او مرستندوی توکي | کتاب، کتابچه، تخته، تباشير او تخته پاک. | |
| د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، تحريري ارزونه، د لوستلو ارزونــه، د ســوال او ځــواب ارزونه. | |
| د زده کړې فعاليتونه | سلام وراندې کول، دحاضرۍ اخيستل، د کورنۍ دندې کتنــه او د تيــر لوست څخه ارزونه. | ۴ دقيقې |
| د انګېزې رامنځته کول | ښوونکی دی نوې لوست په لاندې پوښتنو پيل کړي:<br>ـ ستاسو په نظر د عصري ښوونې او ارزونې معنا او مفهوم څه شی دی؟<br>ـ آيا ويلای شئ چې د عصري او عنعنوي ښوونې او رزونې تر منځ تــوپير څه دي؟ | ۶ دقيقې |
| د ښوونکي فعاليتونه | د زده کوونکو فعاليتونه | ۳۵ دقيقې |
| ـ ښوونکی دې زده کوونکو ته لار ښوونه وکړي چــې د څو شېبو لپاره د لوست متن په چوپــه خولــه ولــولي او ستونزمنې کلمې په کې په نښه کړي.<br>ـ ښوونکی دې د ستونزمنو کلمو معنا په خپله ووايــي او بيا دې پر تختې وليکي.<br>ـ ښوونکی دې د متن هر پــاراګراف پــه زده کوونکــو ولولي، د لوستلو په مهارت کې دې ټولو زده کوونکو تــه | ـ زده کوونکي د ښوونکي له لار ښوونې سره سم هر يــو متن په چوپه خوله لولي او ستونزمنې کلمې په نښه کوي.<br>ـ زده کوونکي په نښه شوې کلمې وايي او پــه معنــا يــې ځانونه پوهوي.<br>ـ زده کوونکي په وار سره د لوست يويو پارا ګراف لــولي او هڅه کوي چې د لوستلو مهارت يې سم شي.<br>ـ زده کوونکي متن ته ګوري او غــور نيــسي،او هــم د | |

| | |
|---|---|
| برخه ورکړي.<br>ــ ښوونکی دې لوست په مناسب غږ ولولي او بیــا دې د ښوونې او روزنې دګټو او ارزښت په هکله د زده کوونکو سوېې په پام کې نیولو سره لنډ معلومات وړاندې کړي.<br>ــ ښوونکی دې متن د سوال او ځواب پــه ډول پــه زده کوونکو باندی ولولي. | ښوونکي معلوماتو ته دقت کوي او خپل معلومات بشپړوي.<br><br>ــ زده کوونکي په دوه کسیزه توګه دمتن په سوال او ځواب ویلو کې ونډه اخلي.<br>ــ زده کوونکي په علاقمندۍ پوښتنو ته ځوابونه وايي. |
| ــ ښوونکی دې د لوست د لا پوهاوي په خــاطر لــه زده کوونکو څخه پوښتنې وکړي او د زده کوونکو ځوابونــه دې واوري او هغوی دې په ښو الفاظو لکه آفرین، شاباس تشویق کړي.<br>ــ ښوونکی دې د لوست لنډیز بیان کړي. | ــ زده کوونکي د متن لنډیز اوري او خپلــې نیمګړتیــاوې بشپړوي.<br>ــ زده کوونکي د کورني دندې موضوعګانې اخلــي او پــه کورونو کې پرې کار کوي. |
| ــ کورنۍ دنده: ښوونکی دې زده کوونکوته په لومړي او دویم درسي ساعتونو کې په خپله خوښه او په دریمه ورځ دې د لوست د پای کورنۍ دنده ورکړي. | |

**اضافي معلومات**

تاسو لوستونکو ته به پته وي چې زموږ د تعلیمي بهیر په تعلیمي سیستم کې څومره بدلونونه رامنځته شوي دي د زده کړې بهیر پر مخ روان دی.

پخوا زموږ په هېواد کې دودیزې زده کړې دود وې چې د مدرسو او جوماتونو له لارې تر سره کېدې چې رسمي او منظم درسي نصاب شتون نه درلود، خو په زده کړه کې لومړی بدلون د امیر حبیب الله خان په وخت کې رامنځته شو، کله چې ښوونه او روزنه له مدرسو څخه ښوونځیو ته ولیږدیده، علت یې داو چې له یوې خوا ښوونه اوروزنه په یو چوکــاټ کــې راغله او له بلې خوا د یو ټاکلي نصاب له لارې منظمه او د ټولولپاره شوه، نو ځکه ښوونې او روزنې د معارف په چوکاټ کې رسمي بڼه ونیوه. د امان الله خان او ظاهر خان په وختونو کې د هلکانو او نجونو لپاره ښوونځي جوړشــول، د ظــاهر خان په وخت کې پوهنتونونه جوړ شول چې په ټولوکې له مرکزي نصاب څخه کار اخېستل کېده او زده کړه د ټــاکلي او منل شوي نصاب په چوکاټ کې تر سره کېده. له ۱۳۵۲ نه تر۱۳۵۷ کلونو چې د سردار محمد داود خان واکمني وه، تعلیمي موسسې زیاتې شوې او د وخت له غوښتنو سره سم په تعلیمي نصاب کې بدلون رامنځته شو. زده کــړو پرمختیــا وکړه. او په تعلیمي نصاب کې شامله شوه. د امیر حبیب الله خان په وخت چې اتلس کاله یې واکمنې وکړه، د نوموړي د سلطنت په وخت کې د ښوونځیو د تاسیس د عصري او ادبي اثارو د تالیف او ژباړې لپاره هڅې پیل شوې رښتیا هم زموږ په هېواد کې د معارف لپاره نوي ګامونه پورته شول،

امیر حبیب الله خان د خپلې واکمنۍ په دریم کال د حبیبیې ښوونځی جوړ کړ او خپل ورور نصرالله خان یې هلتــه آمــر مقرر کړ.هغه وخت ابتداییه دوره څلورکاله وه او په ۱۲۸۶ کال ترې د زده کوونکو لومړۍ دوره فارغه شوه پــه هغــې دوره کې دنیات، دري، جغرافیه او مشق لوستل کېدل.رشدیه دوره درې کاله وه په هغې کې دنیات، جغرافیــه، تــاریخ، دري، پښتو، انګلیسي، الجبر او مقابله، مثلثات، تحلیلی هندسه، طبیعي حکمت، کیمیا او انګلیــسي لوســتل کېــدل. د

عصرې زده کړو له لارې درسي نصاب هم منظم شو او د زده کړو له لارې درسي نصاب هم منظم شـــو او د زده کـــړو لپاره دورې وټاکل شوې ،دهرې دورې لپاره بېلا بېل درسي کتابونه وټاکل شول، د وخت او غوښتنوله مخې پـــه درســـي نصاب کې بدلونونه راځي،کله مضامين زياتيږي اوکله کميږي،کله په محتوا او کله کيفي بدلونونه راځي،کله خو دحجـــم له مخې بدلونونه په کې ليدل کېږي،دهمدغونصابونوله برکت څخه منظمه زده کـــړه ترســـره کېـــږي، د دې ښـــوونځي ښوونکي، ترکان، افغانان او فارغان يې په اردو کې جذب کېدل. په ۱۲۹۱ کال کې د کابل دارلمعلمين جوړ شو۳۰ تنه ښوونکې يې ټولنې ته وړاندې کړل. دا داسې وخت و چې ښوونځی يوازې په کا بل ښارکې و او په سيمو او ولايتونو کې زده کړه دوديزه روانه وه .که چيرې د خپلو پورتنيوخبرو لنډيز راوباسو و به وايو چې تر عصري ښـــوونځيو د مخـــه زده کړه د دوديز نصاب په چوکاټ کې کيدله او د عصري ښوونځيو په رامنځته کيدو سره په درسي نـــصاب کـــې بـــدلون رامنځته شو او زده کړه د درسي نصاب په چوکاټ کې منظمه شوه، کله چې عصري ښوونځي جوړشول، بيا يـــې لمنـــه ولاياتو ته اوږده شوه، په کابل ښار کې دارالمعلمين جوړ شو او د هغو لپاره درسي نصاب ته اړتيا زياته شوه، کلـــه چـــې په۱۲۹۹کا ل کې شهزاده سليمان د معارف لومړی ناظر و، رسماً د معارف د وزير په توګه وټاکل شـــو.د نومـــوړي پـــه وخت کې د معارف په اداري تشکيلونو کې بدلون راغی او په دغه بدلون کې د دارلتأليف په نامه رياست جوړ شو چـــې وکړی شي له دې لارې په منظم ډول درسي نصاب کې کار وکړي او د وخت له اړتياوو سره سم په کې بدلون راولي.

**اخځليکونه**

د افغانستان د پوهنې تعليمی نصاب د چاپ کال ۱۳۸۲ لمريزکال

# اته ویشتم لوست

## د تدریس وخت: په اونۍ کې د پښتو درسي ساعتونه

| د مطلبونو سرلیکونه | د مطلبونو شرحه | وخت |
|---|---|---|
| د لوست موضوع | پښتني دودونه | |
| د زده کړې (پوهنیزې، مهارتي او ذهنیتي) موخې | د لوست په پای کې به زده کوونکي لاندې موخې ترلاسه کړي.<br>_ د پښتني دودونو په هکله به معلومات تر لاسه کړي او هغه به وپېژني.<br>_ متن به سم او روان ولولي او په مطلب به یې پوه شي.<br>_ د پښتني دودونو په اړه به خبرې وکړای شي.<br>_ د متن لنډیز به وویلای شي.<br>_ د لوست د پای فعالیتونه به په یوازې ډول تر سره کړي. | |
| د تدریس لارې | لوستل، لیکل، خبرې کول، سوال او ځواب. | |
| د تدریس وسیلې او مرستندوی توکي | کتاب، کتابچه، تخته، تخته پاک،تباشیر او د پښتني دودونو ځینې انځورونه او تصویرونه | |
| د ارزونې لارې | شفاهي ارزونه، تحریري ارزونه، دلوستلو ارزونه او دخبرو کولو ارزونه | |
| د زده کړې فعالیتونه | سلام وړاندې کول،د حاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې کتنه او د تیر لوست څخه یادونه | ۴ دقیقې |
| د انگېزې رامنځته کول | ښوونکی دې نوی لوست په لاندې پوښتنو پیل کړي.<br>_ کولای شئ د څو پښتني دو دونو نومونه واخلئ؟<br>_ ستاسو په فکرد دود او دستور معنا څه ده؟ | ٦ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | ۳۵ دقیقې |
|---|---|---|
| – ښوونکی دې د پښتني دودونو په شاوخوا هڅوونکې پوښتنې وکړي او د زده کوونکو ځوابونو ته دې پاملرنه وکړي او هغوی دې په ښو الفاظو تشویق کړي.<br>_ ښوونکی دې زده کوونکي وهڅوي تر څو متن په چوپه خوله ولولي او ستونزمنې کلمې په نښه کړي.<br>_ ښوونکی دې د ستونزمنو کلمو پوښتنې و کړي او نو مورې کلمې دې پر تختې و لیکي او معنادې کړي.<br>_ ښوونکی دې دمتن یو یوپاراګراف په زده کوونکو په وار ولولي او په لوستلو کې دې له هغوی سره مرسته وکړي.<br>_ ښوونکی دې د پښتني دودونو په اړوند لنډ معلومات وړاندې کړي. | _.زده کوونکي په علاقمندۍ د موضوع په اړوند د هڅوونکو پو ښتنو په ځواب ویلو کې ونډه اخلي.<br>_ زده کوونکي د ښوونکي د لار ښوونې سره سم متن په چوپه خوله لولي اوستونزمنې کلمې پکې په نښه کوي.<br>_ زده کوونکي د ستونزمنو کلمو په معنا کولو کې برخه اخلي.<br>_ زده کوونکي په وار سره دمتن یو یو پاراګراف لولي.<br>_ زده کوونکي د ښوونکي معلوماتو ته دقت کوي او د پښتني دودونو په اړه معلومات تر لاسه کوي.<br>_ څو زده کوونکي د لوست په مفهوم خبرې کوي. | |

| | |
|---|---|
| ـ ښوونکی دې له څو زده کوونکو څخه وغواړي چې په وار سره د لوست په مفهوم خبرې وکړي.<br>ـ ښوونکی دې د لوست د پوهاوي په خاطر څو پوښتنې وکړي او خپله ارزونه دې ترسره کړي.<br>ـ کورنۍ دنده: ښوونکی دې زده کوونکوته د پښتو په لومړي او دویم درسي ساعتونو کې پخپله خوښه او په دریمه ورځ دې د لوست دپای کورنۍ دنده ورکړي. | ـ زده کوونکي د ښوونکي پوښتنو ته ځوابونه وايي.<br>ـ زده کوونکي د کورنۍ دندې موضوع پخپلو کتابچو کې لیکي او په کورونو کې پرې کار کوي. |

**د متن د ستونزمنو برخو روښانول**

قانون: هغه مقررات او احکام چې دولت یاملي شورا يې د انتظارا تو د ساتنې او ټولنیزو چارو دا دارې لپاره وضع کوي.

**اضافي معلومات**

## پښتني دودونه

پښتني دودونه یو لړ اصول او مقررات دي چې په ټولو قامونو او خېلونو کې موجود دي. د پښتو نر او ښځې د هغو په منلو او تر سره کولو کې مکلفیت لري. دغه دودونه له لرغوني وخت څخه د افغانانوپه تېره بیا د پښتون ولس له ژوند سره سم تړاو لري ځینی دودونه د قومونو تر منځ ورته والي لري ځینی دودونه بیا د یوه ولس په ګټه او ځینې يې په زیان دي په دغه ولس کې د یوه قانون او ټولنیزو مقرراتو حکم لري د دودونو او رواجونو منل او پرې عمل کو ل د افغانانو د قومی تهذیب او پښتونولۍ یوه ضروري او حتمي برخه ده که چېرې له دغو دودونو څخه څوک سرغړونه وکړي هغه پښتون نه ګڼي.

پښتانه نرینه او ښځې خپلو دودونو ته په درنه سترګه ګوري. د پښتنو په منځ کې ډول ډول دودونه او رواجونه شتون لري چې نوموړي دودونه په خاصو او ځانګړو مراسمو کې تر سره کوي. د مثال په توګه پښتانه د غم او ښادۍ مراسم پخپلو منځونو کې په ښه تو ګه ترسره کوي، نرینه، ښځې، پېغلې او ځوانان ټول په یوه اتحاد سره په خپلو دودونو کې ګډون کوي او په شاندارو مراسمو يې لمانځي.

**د پښتو ملي لوبې او د هغو ارزښت**

ځینی لوبې خاصې او سیمه ییزې دي، خو ځینې نورې ملي روحیه لري. د لوبو د ملي روحيې په هکله اروانښاد محمد ګل نوري داسې وايي:

(څرنګه چې زموږ پښتون ملت هم ځانته او صاف، خصوصیات او ښکلي دودونه لري چې د نړۍ نور ملتونه يې په دغه او صافو او عنعنو سره پېژني، باید هر وګړی خپل ملت، ملیت،ژبه، عادات، ملي او قومي ښه دودونه وپېژني او په دې ټولو شیانو سره ځان خبر او وروزي. یو له دغو دودونو څخه زموږ پښتني او ملي لوبې دي چې په پښتنو کې خورا له پخوا زمانې څخه په دوی کې شتون لري لکه : ملي اتڼ، خوسی، توپ ډنډه او نورې لوبې.